# کندهار

## اطلاعات او کلتور

د ۱۳۵۳ کال
اوومه او اتمه گڼه



دجمهوريت دملي سرودلو حه‌چې دکندهار دميخانيکي ليسې په زيار او زحمت جوړه سوې ده، دجمهوري نظام ددرنښت په منظور دهمدې ليسې مخ ته دعمومي سړک پر غاړه ودرول سوه.

# په دې ګڼه کې

# دنیکمرغه کوچني اختر په مناسبت د دولت د ښاغلي رئیس او صدراعظم د وینا متن

ګرانو هیوادوالو!
د نیکمرغه کوچني اختر له امله ټولو خوږو وروڼو او د نړۍ ټولو مسلمانانو ته تبریک وایم.
هیله لرم چې زموږ دین دارو خلکو د روژې په مبارکه میاشت کې د اسلامي فریضې په اداکولو او د الهي امرونو په اجابت سره د بې نیازه خالق رضائیت حاصل کړی وي.

باید په یاد ولرو چې د هیواد د وږو او بې وزلو د احوال پوښتنه د هغو ټولو خلکو دیني وجیبه او اخلاقي وظیفه ده چې د مرستې توان لري.
باور لرم زموږ مهربانو او دردمنو خلکو په دې مبارکه میاشت کې علاوه پر دیني فریضې خپله دغه اخلاقي او اجتماعي وجیبه هم ادا کړې ده.
د اختر ورځې چې په دیني جنبه برسیره اجتماعي خاصیت لري د نړۍ مسلمانان یووالي، ښه نیت او پاکې عقیدې ته را بولي.
د همدې فلسفې د مخې هیله کوم د هیواد ټولې خویندې او وروڼه هغه خفګان بې اتفاقي او بدبیني چې د بده مرغه کله کله د کورنیو او زموږ د خلکو د بدمرغیو سبب شوې دي ټوله لیرې کې او د عقیدې په پاکې، یووالي او ورورولي سره چې د دغه جمهوري ځوان نظام هیله ده د اختر بختورې ورځې تېرې کړي.

ګرانو هیوادوالو!
زموږ هیواد د خپل وروسته پاتې والي د جبران د پاره زموږ د خلکو هر اړخیزه هلو ځلو او عمل ته اړه دی د دغه هدف ترسره کول د صادقانه خدمت او ایثار څخه پرته امکان نه لري. په تیره بیا هغه مسئولیت چې د خپلو بې وزلو او خوارو خوږو وروڼو په مقابل کې یې لرو هېڅکله هېر نه کړو.
د هغوی د اړتیاوو د لیرې کولو د پاره تر وسه وسه مرسته وکو. جمهوري دولت د تاسیس له سره تر اوسه پورې د خپلو خلکو د نیکمرغۍ او هوساینې ترسره کیدو او د خوارې او غریبې دعوا ملو او عیلتونو د له منځه وړلو په هڅه کې فاودی. په دې لار کې به پوره بری هغه وخت زموږ په برخه وي چې زموږ ټول خلک د ایثار په منښه او د مسئولیت په احساس سره په پوره یووالي په هغه خدمت کې چې د خپلو خلکو په مقابل کې یې په غاړه لري مرسته او همکاري وکړي.
په پای کې یو ځل بیا د دې بختورو ورځو له امله د افغانستان ټولو خلکو، پښتونستانیانو وروڼو او د نړۍ مسلمانانو ته مبارکي وایم. او د لوی خدای (ج) د دربار څخه د جمهوري نظام په رڼا کې د ګران افغانستان نیکمرغۍ او د نړۍ د سولې هیله کوم. (ب)

د سرې میاشتې مخصوصه هفته د دولت د بناغلي رئیس په پیغام د تلې په ۲۷ په ټول هیواد کې شروع سوه، دا دی د پیغام پښتو متن:

# هغه وخت یوه ټولنه نیکمرغه بللای سو چې د هغې د افرادو د بدمرغیو د عواملو موجبات له منځه ولاړ سي

ګرانو هیوادوالو!

خوښ یم د سرې میاشتې د مخصوصې هفتې له امله خپلې د زړه هیلې زموږ د نجیبو خلکو د نیکمرغۍ او د ګران افغانستان د لوړتیا د پاره څرګندې کړم.

درنو خوندو او ورونو:

دا هفته چې د سرې میاشتې د مخصوصې هفتې په نامه هر کال زموږ په ګران هیواد کې پېژندل سوې ده، زموږ خلکو ته ددې ښه فرصت دی چې د اسلامي لوړو تعلیماتو په پیروي او د خپلو انساني عواطفو له امله د بې وزلو او خوارانو سره مرسته وکړي. د ښو لویدلو خلکو لاس ونیسي او د ناامیدو خلکو زړونه لاس ته راوړي چې په دغه کار کې په برخې اخیستلو سره د خدای خوښې او روحي آرامي ترلاسه کړي.

په دې پېړۍ کې چې موږ ژوند کوو د علم او تخنیک په پرمختګ سره د بشري ټولنو زیاتره مشکلات له منځه تللي او ډیری ستونزې حل سوې دي خو سره د دې هم بشر په دې نه دی بریالی سوی چې د سماوي پېښو او حادثو او د طبیعت د مصیبتونو سره لکه جنګ، ناروغتیاوې او نوری ناوړې پېښې چې هره یوه یې په خپل ذات کې انسان ته مصیبتونه او کړاونه پیدا کوي، مخه ونیسي په دغه راز وختونو کې د نوع دوستو او باعاطفه خلکو برخه اخیستل کولای سي تر یوې اندازې پوری د مصیبت ځپلو روحي دردونه کم کړی او آرام یې کې. د خیریه ټولنو جوړېدل چې د بې وزلو او مصیبت ځپلو د مرستې په غرض منځ ته راغلي دي د خلکو د نوع پالنې د احساساتو څخه یې سرچینه اخیستې ده.

زه یقین لرم چې زموږ ګران او دردمند هیوادوال به په ښه ډول په دغه انساني وظیفه پوه وي او د سرې میاشتې د خیریه موسسې سره د هغو وظیفو په اجرا کولو کې چې د یو ملي او بین المللي خدمتګار په توګه یې د هیوادوالو او همنوعو په

په مقابل کې په غاړه لري مرسته کوي.

هغه وخت یوه ټولنه نیکمرغه بللای سو چې د هغې د افرادو د بدمرغیو د عواملو موجبات لکه فقر ناروغتیا، بې سوادي او داسې نور له منځه ولاړ سي.

«پاته د پښتې په دریم مخ کې»

دمولانا جلال الدین بلخی دشخصیت په هکله داطلاعاتو او کلتور دوزیر بشاغلی پوهاند نوین دوینا پښتو متن:

# دمولانا بلخي علمي او عرفاني شخصیت

د افغانستان د نامتو عارف مولانا جلال الدین بلخی دلمانځنی محفل چې دځینو افغاني او الماني عالمانو په ګډون

دمولانا په اصلي مینه کې جوړ سوی دی داطلاعات او کلتور دوزارت دمنسو بینو او ددې خاوری دملی او فرهنګی مفاخرو

دهر علاقمند دپاره دخوښۍ منبع ده. ځکه مولانا جلال الدین بلخی دنامتو علمی او عرفانی شخصیتو څخه یو لوی شخصیت

دی چې په دغه علم پالونکي خاوره کې یې ستر ګې روڼې کړې دي او په خپلو تابناکو افکارو یې دعلم او معرفت جهان د«۷»

پیړیو په موده کې روښانه ساتلی دی له دې امله مناسبه ده چې وطنوال یې تر پخوا زیات و پیژني او نورو ته یې ورمعرفي

کړي

دافغانستان دجمهوری دولت دعالی اهدافو څخه یو هم ددې خاوری د تېر وسوو

فرهنګی میراثو ساتنه او دهغو کسانو معرفي ده چې هر یوه د تاریخ په اوږدو کې دملی باافتخاره فرهنګ تاداو ایښی

او خپل نقش یې ښه تر ا لو بولی دی او مولانا

جلال الدین بلخی ددغو نامتو کسانو په لومړی صف کې ځای لري چې نه یوازې ددې ملك دفرهنګی ستری بنا استحکام

دهغوی دفکري او عملي هڅو مرهون دی، بلکه د بشري او جهاني فرهنګ په غنا کې یې لویه برخه اخیستې ده.

دمولانا عرفاني شهرت یوازې دهغوی دزوکړې په ځای یعنې بلخ او آرامګاه یعنې قونیه پورې محدود پاته کیدای نسی.

ددغه لوی شخصیت شهرت جهاني جنبه لري په نړۍ کې څو یري لږ سیمې پیدا کیږي چې هلته دی د بلخ نوم یاد سی او دمتکلم او

مخاطب ذهن دی په هغه ګړۍ مولانا جلال الدین بلخی ته متوجه نه سی. هغه شخص چې دجهان دلویو فکري رهبرانو

څخه دی او تر ۷۰۰ کاله زیات وخت کیږي چې ددوی ځلیدونکی اندیښنی دملیونو معرفت غوښتونکو کسانو پر اذهانو یې

رڼا اچولې ده.

هغه شخص چې دشعر په جهان کې دده داشعارو ددیوان په عظمت چې دشمس په

دیوان مشهوره سوی دی، څو یر لږ دیوانونه

مونډل کېږي خو سره ددې چې له شعر، دده معنوي مقام دومره لوړ دی چې ډېر لږ شاعران د هغه مقام ته رسېږي.

د هغه جاویدان اثر یعنې مثنوي د بشر د روح کتاب دی چې په خپله نوع کې په هېڅ عصر او زمان کې د هغه ساری نه لیدل کېږي

او دومره دقیق عرفاني او اخلاقي مطالب په هغه کې سته چې سره د هغه چې د «۷» پېړیو په جریان کې تر «۴۰» مفصلو او مختصرو

شرحو ډیات د نامتو پوهانو او عارفانو له خوا پرې لیکل سوي دي، مګر تر اوسه لا د حق مطلب نه دی ادا سوی. او په دغه ژور

سیند کې تر اوسه د زیات تحقیق او پلټنې امکان سته. ځکه نو د دغې یوه سیمنار جوړېدل چې د هغه د بحث موضوع د دغه

لوی عارف د اشعارو، افکارو او ژوندانه د احوالو په باب وي او د هغه د علمي او عرفاني مقام د رڼښت کوي، یو ضروري او

ګټور کار دی. او د جمهوري دولت د عالي اهدافو د تحقق په لار کې یو مترقي ګام دی دولت تل هڅه کوي چې هېواد د عصري

تخنیک او علم په رڼا روښانه آینده ته سوق کړي، په عین حال کې خپل پیوند د ګذشته سره چې د علم او عرفان په پلوشو

منوره ده، وساتي.
د مولانا آثار د ژورو او وسیع بحر غوندې دي چې د زیاتو اکتشافاتو د پاره مکرر سفرونه

ایجابوي. د وخت او زماني غوښتني بدلون کوي او د هر نوي فکري جریان سره سم د تېرو

کسانو د آثارو د مطالعې د تجدید ضرورت

احساسېږي او په هغه جمله کې د دغه لوی عالم آثار د توجه وړ دي

د مثال په توګه، نن ورځ کولای سو د مولانا آثار د دغو مطالبو په زمینه کې وڅېړو:

د مولانا حقیقت پرستي.
د ده نظر د ځان په باب او تر ځان د باندي

د ده نظر د ګذشت او تغافل په هکله.
سوفیزم او د هغه تأثیر پر مولانا، یا د مولانا تأثیر پر هغه باندي.

د خاصو اصطلاحاتو په باب مطالعه لکه مې، نې، مستي، بت او داسې نور کلمات چې د مولانا او نورو عارفانو شاعرانو په آثارو کې راغلي دي.
د ترقۍ او پر مختګ د مفهوم په هکله د مولانا عقیده چې د روحي تکامل د پاره یې

پلټۍ او یا یې پېشنهاد دوی او د غه رنګه د نوي او پر یدو د پېدا ښت په باره کې د ده نظر.

په غزل او مثنوي کې د مولانا سبک او د هغه مقایسه د اسلافو، اخلافو او معاصر ینو سره

څرنګه چې مولانا عرفاني شعر، خپل نها یي معیار ته رسولی دی، نو څه ډول کولای سو چې د معارف په ساحه کې د هغه د آثارو

څخه استفاده وکړو؟
هیله لرم چې دا سیمینار له هره حیثه په خپله فرهنګي وظیفه کې بریالی وي

د المانی پوهانو او عالمانو میلمنو د پاره د مولانا په اصلي ټاټوبي کې د په زړه پورو ورځو هیله کوم او د افغاني او الماني

علمي مقاماتو څخه تشکر کوم.



مسئول مدیر: کریم طالب

اداره: د شهیدانو واټ
د ټیلفون نمبر: ۲۸۸۴

د ۱۳۵۳ کال د میزان میاشت

# مولانا جلال الدین بلخي

د بشري عالم کاروان د خپل پیدایښت سره سم د تکامل پړاو ته په بیړه روان دی او په خپل مسیر کې یې د بدویت څخه تر مدنیت پورې بې حسابه منزلونه او پړاوونه طی کړي دي خو د دې پر مختګ او تکامل اصلي عوامل هغه حکیمانه اندېښنې او افکار بلل کېږي چې د نړۍ د منل سوو مشاهیرو او نوابغو له اذهانو څخه یې نشئت کړی دی. د غه وجه ده چې نن ورځ په جهاني سویه د هغو شخصیتو درناښت او درناوی کېږي کوم چې د بشري نوع د مادي او معنوي تکامل په لار کې یې خپله هستي او ارام له لاسه ورکړی دی.

نن ورځ هر څه چې موږ لرو هغه زموږ د پرونیو شخصیتو د فکري نبوغ او عملي فعالیت نتیجه ده او هغه څه چې د سبا ورځې نسل فخر په کوي، زموږ د نننیو شخصیتو ابتکار او نبوغ د هغه تاداو اېږدي.

که د ګران هېواد افغانستان ګذشته ته نظر وکړو داسې علمي ادبي او فلسفي څېرې مو تر سترګو کېږي چې هر یو یې د دهر په بوستان کې خاص رنګ او بوی لري. بلې افغاني شخصیتو د عصر او زمان په تېرو محدودو شرایطو او وسایلو کې خپلو شخصیتونو ته په جهاني معیار تبارز ورکړی دی. دوی د علم او پوهې له هرې کاسې څخه اېندې وهلې دي، د طب، ساینس او نجوم څخه نیولې تر هنر، ادب او فلسفې پورې په هره رشته کې تکړه استادان او نامتو نوابغ منځ ته راغلي دي. په تېره بیا په تصوف او عرفان کې عالي مقامو متصوفینو ظهور کړی دی او د فلسفې جهان ته یې ابدي ځلا ور بخښلې ده.

یو د غو سترو شخصیتو څخه د هېواد لوی عارف او متصوف فیلسوف، مولانا جلال الدین بلخي دی. تقریباً «۷» پېړۍ پخوا د غه نامتو شخصیت د هېواد په لرغوني تاریخي ښار یعنې بلخ، چې یو وخت د علم او فرهنګ زانګو وه، نړۍ ته سترګې رڼې کړې او د تصوف پر اسمان د یوه روښانه ستوري په څېر وځلېدی. د علم او فضل پلوشې یې تر افاقو هسته تېرې سوې.

د تقدیر لاس دا متبحر فیلسوف د خپل معنوي نیستان څخه جلا کې او د نفیر زمزمې یې تر قونیې ورسېدې څو هلته یې خاموشه سوې خو د هغه معنوي شخصیت تر ابده د جهانیانو په زړونو ته بیا د سالکینو او عارفینو په حلقو کې ځلېدونکی دی.

«پاتې د پښتې په دریم مخ کې»

د راشد په قلم

# د میزان د میاشتې ۲۳ یاد هیواد د نجات ورځ

افغانستان همیشه د استعمار او استعمار-ګرانو د دسیسو، پلمو او لمسون په ضد کلکه مبارزه کړې او کوي یې او دغه حقیقت د تاریخ په پاڼو کې په ښه او زرینو ټکو سره ثبت سوی دی.

که د تاریخ پاڼو ته پام وکړو دا به را ته څرګنده سي چې افغانانو هیڅکله د مریی توب او غلامۍ

یوغ په اوږو باندې نه دی قبول کړی بلکه ددې د پاره چې آزاد او خپلواک

ژوند وکړي او د پردو د تسلط څخه په امان وي د هیواد او هیوادوالو

د خپلواک او آزاد ژوند کولو د پاره یې د استعمار د ریښو د له منځه وړلو په

لار کې خپل سرونه قربان کړي او په خپلو وینو یې خپلواک ژوند ګټلی دی.

زموږ میړنیو، سر ښندونکو او فدا کارو پلرو او نیکه ګانو د هیواد د

خپلواکۍ د پاره کلکې مبارزې وکړې او د همدغو مبارزو په نتیجه کې یې

په ۱۹۱۹ کال کې خپله خپلواکي بېرته حاصله کړه په هیواد کې د

خپلواکۍ د ترلاسه کېدو سره سم د هیواد د آبادۍ، ترقۍ او پرمختګ د پاره په چټکو

فعالیتونو او کوښښونو شروع وسوه.

په هیواد مینو بچیانو

د زیار او زحمت له امله د هیواد اقتصادي، سیاسي او اجتماعي

حالت د هغه پخواني درهم

او برهم حالت څخه وژغورل سو او د هیواد د آبادۍ، ترقۍ او پرمختګ په لور په ډېره

چټکۍ سره مخ په وړاندې ګامونه واخیستل سول خو استعمار او استعمار ګرانو نه غوښتل

چې داسې یو حالت زموږ په هیواد کې ووینی او په دې یې رشک وړی چې زموږ هیوادوال

د نورو مترقي هیوادو د خلکو په شان یو ابرومند او د اعتبار وړ ژوند ولري څو هغه

وچې استعمار ګرانو د خپلو شومو دسیسو له لارې په هیواد کې یو کورني اغتشاش او

بحران جوړ کړ.

د دې بحران او اغتشاش په اثر په هیواد کې د علم ډیوه

چې تازه بله سوې او رڼا یې د هیواد هر لور ته خپرېدل، مړه سوه او د علم او عرفان

دروازې وتړل سوې.

په دغه تاریکه دوره کې د هیواد منورین،

پوهان او ډېر بې ګناه خلک ناحقه ووژل سول له دې دا چې په هره وسیله

سره دا کوښښ جاري وو چې د علم او معارف دروازه بېخي وتړل سي.

دغه حالت په هیواد کې ۹ میاشتې دوام وکړ څو هغه وچې وطنپرستو عناصرو

هیواد ته د دغه حالت څخه د نجات ورکولو د پاره ملا وتړل او په دغه

لار کې یې د فدا کارۍ ایثار او قربانۍ په قبلولو کې هیڅ دریغ ونه کړ او د دوی

د دغو قربانیو، سر ښندنو او فدا کاریو ثمره وه چې په هیواد کې د دغه اغتشاش

او کورني بحران اور مړ سو.

د دغو فدا کارو،

سر ښندونکو او هیواد ته د دغه ناوړه حالت څخه

«پاته په ۲۸ مخ کې»

آراء او افکار
ادبي بحث

خیر محمد ژواک

# د پارناس ادبي دوره علت وه که معلول؟

د کندهار مجلې خوبه ویونکو! ښه پوهیږم چې تاسې د کندهار د مجلې څخه د هنر – په هنر کښې د ادبي تندي د ماتيدلو

ښه‌لویه هیله‌لرئ. ځکه کندهار هغه چې د هو تکو درنې ادبي دورې خلاقه قدرت یې د نارنج د قصر په مینځ کښې پیدا کړاوه‌ن

د ګران افغانستان د ادبي تاریخ یو رنګین نقش بلل کیږي او کندهار هغه چې د لوی احمدشاه د ژبې د ژوندي ساتلو او د ادب

په ښایست کښې د امپراطورۍ د جوړولو قهرماني یې د یادولو وړ ده. کندهار هغه چې د سردار مهردل د ادبي ژوند هغه او برم

ور ته د هیر یدلو نه دی. ځکه نو ددغه کندهار او ددغه ښار د مجلې ویونکې غواړي چې مجله وګوري او په مجله کې د ادب د ملغلرو

پرونې او نننۍ لړۍ وسپړي

د املحوظ ماد کندهار د «روه» د کلي پیدا، دې ته مجبور کوي چې د ادب په برخه

کې د کابل د درې څخه قلم ته د الو تنې اجازه ور کړم. هلته چې د سرو انارو تر ونه لاندې او د خوږو انګورو د تاک وا ړخ ته

ناست ویونکي، دې ته وګمارم چې د ادب د سیند د یوې څنډې څخه یوه لپه واخلي

او څپله ادبي تنده په ما ته کړي. کندهار زما کوردی خو نه پوهیږم چې ګور به مې شي که یه؟

بیا هم د کندهار ژ بورواو هغو کسانو ته چې د مغزو په ولو کښې رڼا ور په برخه ده لږ ګړی د یوې ادبي دورې و بلد تیا ته را بولم

دوي د قلم او مضمون صحبت ته کښینوم، دا قربانی به دوي و کړي پوهیږم او ددا یقین هم را سره شته.

ما وو یل «د پارناس ادبي دوره علت وه که معلول؟» د پار ناس یا پار ناسیزم ادبي دورې ته ځینې «د هنر د هنر د پاره»

ادبي دوره وایي. «هنر د هنر د پاره!» دا دوره په ادب کې سته خو دا سوال هم باید وڅیړل شي چې «هنر د هنر د پاره» علت ؤ که

معلول؟

د دې سوال په برخه کښې ځینې عقیده لري چې دا دوره علت وه یعنی دغه ادیبان

په دې عقیده وه چې هنر استقلال در لوداو لري یې بیا هم په دې اساس دوی نظر یه څرګندوله چې باید د هنر استقلال و منل

شي.

د دې ډلې دا خبره هیره کړې وه چې هنر د

مذهب د پاره خدمت کړی دی او کوی یې لاهم. د دې ډلې دا هیر وله چې هنر یې د بهای کلکګ مریی کړی دی او مریی یې لاهم و.

د دې ډلې دا هیره کړې وه چې هنر د ژوند یو اړخ څیړل هنر ی اسارت و بولي. خو بلې ډلې بیا هنر یا

د هنر دغه دوره د نورو علتو نو معلول ګڼله حتی چې کله به په دې عقیده سول چې علت معلول دی، معلول علت.

خیر راسي چې اصل مطلب ته راسو هغه دا چې هنر د هنر یا ادب د ادب د پاره د پارناس په دوره کښې څه ډول اصول غوره ګڼل؟

د دې مکتب لوی اصلونه داوه:

۱- د شکل کمال د کلیماتو د انتخاب او بیان په لحاظ.

۲- د احساساتو نه داخلیدل او د ارمان او هدف لوری ته توجه نه کول.

۳- د قافیې بنایست.

۴- د دغه اصولو مطلق مراعات.

د دې مکتب د منونکو په عقیده داوه چې اثر باید نه سړی وخندوی او نه یې

وژړوی بلکه باید بنایسته وی او هدف په ده کې نغښتی وی دا و د پارناسیزم یا «هنر د هنر د پاره» د دورې اصول. اوس به نو

راسو دې خبری ته چې دا مکتب د لته پر دې ځای ختم و بولو او که په خپله علت؟

په اخبره داډول نه ده بلکه علت بل دی

چې د دې مکتب رقیب پیدا کیږي، رقیب یې کـــــوم دی؟ د دې حقیقت څیړل موږ ته اصله مسئله څرګندوی هغه

دا چې د پارناسیزم لوی رقیب «رومانتیزم» دی.

د رومانتیزم اصل کوم دی؟

په یوه لحاظ د احساساتو مداخله هغه

هم په هنر کی یعنی هنر باید د لیدونکی احساس وښوروی او و یې پاروی.

راسي د احساساتو د دخالت او پارونې

غایه هم څرګنده کړو هغه دا چې رومانتیک هنرمند د بهای مزدور بلل شوی دی، بهای مشبوع شوی دی، دی په حسن موږ دی، دده

مړه اشتها باید څنګه ژوندۍ شي؟ بلې! د هنرمند د هنر په زور. هنرمند باید لګه نجلۍ بهای لالا ترسیم کړی او د سر وشو نیو یا تییو

تشبه بهای لالا ته په انار وسره و کړي داډګ او د حسن او حسین مشبوع وږی کړی او سوې اشتها یې ژوندۍ کړی.

هنر او د هنر مزدور دې ډول مزدوری او دې ډول د ادب خوارکه ته د یوه ادبی مکتب په پیروی پارناسیزم بدوایې او

حق لري چې د هنر، ادب او د هنرمند او ادیب استقلال وساتي.

دا حق منل یو حقیقت دی په دې اساس د پارناس دوره علت نه دی بلکه معلول

دی یا دا چې د پارناسیزم اصل ته د رومانتیزم د مکتب په مقابل کښې یوه بغی باید دوایو نه دا چې دې مکتب ته د خندا او ژړا نفی

کول.

دا نفی د بهای د پاره وه او بهای باید ادب نه وای مسخره کړی. هنر عظمت درلود

ځکه دا نسان د کار خلاقیت پکښې نغښتی و.

د هنر او ادب د پاره په عظمت کتل ګناه

نه وه هنر د هنر د پاره د هنر د عظمت هغه نفی نه ده چې د هنر اعجاز ته په قیمت ئشی قایل.

هنر هنر دی او هنر عظمت، ځکه د کار د خلاقیت څخه زیږی او د کار د خلاقیت لویې ور په بر خه ده.

«پاته په ۲۸ مخ کی»

# شمس الدین کاکړ

دمینې او محبت په اور سوی مین او د کندهار دادبي بڼ یو خوږ ژبی بلبل شمس الدین دی. که څه هم دده د ژوندانه په باب پوره یقیني معلومات تر اوسه لاس ته نه دي راغلي. خو دده اشعار په خپله تر ډېره حده دده په پېژندګلوۍ کې زموږ سره مرسته کوي او د اشعارو څخه یې معلومېږي چې په خټه کاکړ او د کندهار د (کلچ آباد) په کلي کې اوسېدی د زوکړې

او مړینې نېټه یې هم نه ده معلومه. په اټکلي توګه ښایي تر ۱۱۸۰ هـ وروسته زیږېدلی وي ځکه داسې ویل کېږي: کوم وخت چې سردار محمد عظیم خان په ۱۲۳۰ کې د کشمیر او پنجاب والي و، شمس الدین تقریباً ۵۰ کلن و او په ۱۲۳۸ هـ کې یې دخپل دیوان دوهم ټوک هم پای ته رسولی دی، نو ښایي د زوکړې نېټه یې ۱۱۸۰ هـ یا یو څه وروسته وي (۱)

شمس الدین ښه عالم او ادیب شاعر و خو له بده مرغه لکه څرنګه چې دده د فضل او پوهې سره ښایېدله، خلکو نه پېژانده.

دده حساس روح او سپېڅلي وجدان د خلکو دا بې قدري ښه حس کوله خو د ژوندانه د روند پېټی یې پر غاړه پروت و او هر څه یې ګالل خو کله کله به یې د خلکو د بې نیازۍ او بې قدرۍ څخه شکوه کول لکه چې وایي:

لکه لعل په ایرو کې دی بې قدره
همسې پروت دی شمس الدین په کلچ آباد

شمس الدین دخپل ژوندانه حال د وینا په ترڅ کې په کنایو او استعارو سره بیان کړی دی او داسې معلومېږي چې سره د ټولو روحي فشارو په کور کې هم دده وضع ښه نه وه.

د احساس شاعر د زماني له سړو او تودو څخه ډېر ستومانه و او د دنیا بې وفایي ته دخپلو پخوانیو شاعرانو او فلاسفه و په څېر لکه رحمان بابا ښه ملتفت سوی و

او د دنیا بد اړخ یې داسې غندلی دی:

زوی له پلاره پلار له زویه کا بېزاره
ډېره بېحده بد هواده دا دنیا

په باطن د ننه زړه د سړي تور کړي
همسې شان توره بلا ده دا دنیا

شمس الدین په خپل ټاټوبي کې ډېر ربړونه ګاللي او غمونه یې زغملي دي. خو کله چې د زماني حالات ډېر په عذاب کې، ناچاره سو کندهار یې پرېښود او

هندوستان ته یې مخ ونیوی د کندهار پر پښو لو علت یې لکه څرنګه چې دده د اشعارو څخه معلومېږي، د یوې ښکلې معشوقې

مینه او محبت و او د هغې په مینه کې یې ډېرې زارۍ او سوځنده غلبلې وهلې دي. داسې ښکاري چې دی پر هغې سخت مین و

او د هغې مینې دی ځو کلاوه څو بالاخره د مفلسۍ او غریبۍ او د کاله د ملامتۍ له لاسه یې وطن پرېښوی او د ارمانه ډک زړه

یې هند ته یووړ په دې بیتو کې د کور او کاله ناراضي داسې څرګندوي:

---

(۱)- پښتانه شعرا دوهم ټوک

موراو پلار نسوه په ماسره خوشحاله
چې مې وويني دعشق په غم ملاله
چې واقف سي زما دميني له احواله
راته وايي زويه نسوې نيک خصاله

داپر څه؛ نحس ساعت يم زيږيدلی
يو طرف راته دعشق ګرفتاري سوه
بل طرف راته دځان خوارهخواري سوه
يو طرف در قيبانو خونخواري سوه
بل طرف راته دخپلو بېزاري سوه
نه خلاصيږم په بلا يم کښېوتلی
لنډه داچې په ځواني کې يې وطن
ترک او داخوش آوازه بلبل دپرديسه

درياب ته ځان قرار تاوکړ. خو دهند ښايسته وودده زړه نه صبر اوه. کله چې به يې دميني اوجدايي لمبه پر زړه را تاوسوه نو دخپلې مېنې په ياد به يې سوځنده غلبلې وکړې او دموراو پلار څخه به يې په دې ډول ګيلې کولې:

زه دعشق ترخامو شه يې په شورخوښ يم
هر بلبل اخلې تعليم په شرو شور کې
په يوه مې د يار مينه نه ما تيرې
ښايښته که هر څو وينم په لاهور کې

لاهم لته بيه يې زما درنځ علاج کړ
که څه مهر واى زما په پلارومور کې

شمس الدين کاکړ د عمر زيات برخه په هندوستان کې تېره کړه او په سپين ږير تيا کې چې نا اميدۍ ډېر غلبه پر کړې وه لا يې هم زړه دعشقه ډک وُ دې پخپله

وايي:

شوم له عشقه لکه کاه هسې ضعيف
رنګ زېړی، جسم نری، صورت نحيف
محبت تخم مې څنګ کوي په زړه کې
در بيع فصل مې رسي په خريف

ډيری پرديسه يې وګاللې، مياشتې او کلونه يې دهجر په رنځ کې تېر کړل. څو پرديسه ډېر زور پر وکې؛ مرګ ور په يادسو. ويل نه چې د پنجاب خاورې را باندې واوړي نو دوطن خيال يې په زړه کې اور بل کړ. ديوې خوا د معشوقې دهجر لمبه وه چې ګرده عمر يې پکښې شپه وه،

د بلې خوا يې صورت خوار او عمر يې خوړلی ؤ، ځکه يې وطن ته دستنېدو قصد وکې:

ترځواني مې په پيري که کې عشق غالب سو
ډېر شيرينه وې پر وخت د سحر خواب
دوطن عزم موقوف کړه شمس الدينه
توري خاورې دا منګېر دی د پنجاب

د لاهور دښاره را ووت، خوزړه يې ارام نه کاوه چې پر خپله مېنه به يې سترګې ولګيږي که يه؟ د کاله ناځواني اوجفاوې

يې هم نه هيريدلې خود مېنې اور يې هم وار په وار تازه کيدې. څو په پای کې يې فيصله وکړه چې بايد خپل وطن ته راستون

سی:

برايي مې خواب ليده چې مخ پر کور ځم
په هوس لکه بلبل د باغ پرلور ځم
جذبه مې ددلبر څکوي وځا نته
ګنې بشري طاقت نه لرم په زور ځم

چې به بياوايي خداى مه واى راوستلى
زه يې محض دقبليدو لهدې پيغو رځم
چې له خپلو مرييې وتښتې بيا راسی
زه داهسې وخپل يارو ته مخ تورځم

په نصيب به مې ديدن له ياره کيږي
شمس الدين چې اوس دښاره د لاهور ځم

شمس الدين دعمر په اخر کې کندهار ته راغی او غالب ګمان دادی چې دعمر تر پايه په کندهار کې ؤ. دده دژوند نور

احوال زموږ لاس ته نه دی راغلي چې ده به خپله ور که پيدا کړی وی او که به دار ما نه ډک زړه ګور ته تللی وی

شمس الدین کاکړ خورا لوی عالم تیر شوی دی که ددهٔ دیوان ته ځیر شو په شعر کې یې فلسفي، تصوفي، اخلاقي او تربیوي افکار په ښه توګه نغښتي دي په ادبي فنونو کې یې هم ښه لاس درلود. دده په وینا کې هر راز بدیعي ښیګڼې سته دشعر بیل بیل ډولونه لکه غزل، قصیده، رباعي، مخمس، مسدس، مثمن، معشر او نور اقسام لکه ترکیب بند، ترجیح بند، مثنوي اوداسې نور لري دمشجر او غیر منقوط غزلې یې په خورا ښه توګه ویلې دي.

ده یو کتاب د«سراج الموتی» په نامه په پښتو لیکلی دی علاوه پر هغه په فقه، تفسیر او احادیثو کې دلوړ مقام خښتن دی.

## دشمس الدین دشعر سبک

شمس الدین په شعر کې دا کثرو تیرو شوو شاعرانو پیروي کړې ده خو دشعر معنایې څوله یو محسوس عشقي رنګ لري دالفاظو او کلماتو نښلول یې پیر محمد کاکړ ته زیات ورته دي. دغه وجه ده چې دی د پیر محمد دسبک شاګرد بولي. که څه هم د پیر محمد سبک په پښتو کې دخوشحال خان او رحمان بابا دسبک څخه الهام اخیستی دی خو ځینې لفظي ښیګڼې ده هم پر اضافه کړې دي.

شمس الدین علاوه پر هغه چې د پیر محمد دسبک ملګری دی مګر په ځینو مختصاتو کې رحمان بابا ته ډیر ورته دی. رحمان دعشق په نړۍ کې وقوعي تأثیراتو ته تن ورکړی دی.

شمس الدین هم کټ مټ دغه لار په خوله ورکړې ده. ځکه دوی دواړه دعشق په لمبو سوی دي. خو بیا هم درحمان بابا عشق علیحده جذبه لري او دشمس الدین هغې بیله جذبه رحمان په تصوف کې دحال او مقام خښتن دی، مګر شمس الدین په دې لار کې دطریقت لمن نیولې ده.

دواړه دغزلو مختلف اقسام لري او دواړه دمادیت څخه بیزاره دي خو شمس الدین څه غزلې په تکلیف ویلې دي او دحمید دسبک وډمه هم ځنې ولاړ یږي.

تر دې اندازې پورې چې ده دحمید یو غزل استقبال کړې ده او پر هغه خیال یې یو غزل ویلې ده.

حمید وايي!

خط پر مخ دصنم راغی که سپوږمۍ<br>
سوه په هاله کښې<br>
دایې غابښ په خوله زیب کا که ژاله<br>
سوه په لاله کښې

شمس الدین وايي:

خط پر مخ دصنم زیب کا که سپوږمۍ<br>
ده په هاله کښې<br>
غابښ یې ښه ایسي په خوله کښې که شبنم<br>
په سر ولاله کښې

په دې دواړو غزلو کې دحمید تشبیهات کنایات، استعارات او دالفاظو ترکیب تر شمس الدین ډیر قوي دي. علاوه پر دې چې شمس الدین تر حمید وروسته دا غزل ویلی ده خو بیا هم دحمید غزل باندې ښه ده. دشمس الدین تشبیهات، کنایې او استعارې هم دحمید په پیروي شوي دي. نو ویلای شو چې دی دحمید مکتب ته ډیر ورته دی. دحمید ډیر فکرونه یې دخپل فکر په غالب کې ځای کړي دي. یو بل ځای یې هم دحمید دغزلې پر طرز عیناً هغسې غزل ویلی ده.

حمیدوایی:
لا هلکک به یی وژلی وم په زهرو
که می وای مهر وشفقت په پلارومور کښې

شمس الدین وایی!
لا هلکک به یی زما درنځ علاج کړ
که څه مهر وای زما په پلارومور کښې

په دې غزل کی دشمس الدین فکر اود غزلی خوند تر حمیدلوړه دی الفاظ یی هم پر بنه دی که څه هم دحمید پرلار تللی دی

غرض دا دی چی شمس الدین په سبکک کی په یو مستقل مکتب نه گڼل کیږی. ده په هر مکتب سر ورننه‌ایستلی دی خود پیر محمد

اوحمید په مکتب کی درحمان په فکر پسی هم ډیر تللی اودهغه متابعت یی کړی دی. په نتیجه کی وایو چی شمس الدین دیوه

ممتزج سبکک څښتن دی چی دهر مکتب خوند یی کتلی دی
که دا خبره بنه وڅیړو شمس الدین څه

غزلی په خپل دیوان کی لری چی دیو بل پخوانی سبکک پیروی پکښی سوې ده او دا سبکک دملاالف هوتکک اونورو دینی

او مذهبی سبکو ته ور ته دی:
که څوک وو ینی صحبت دطالبانو
نولازم به کړی وصلت دطالبانو

طالبان د پیغمبر د باغ تو تیان دی
گل په باغ کی وی زینت دطالبانو
شمس الدین په خپل سبکک کی دټولو

سبکو څخه استفاده کړې ده؛ مثلا د جملو ترتیب یی دحمید او پیر محمد دسبکو رنگک لری او په معنوی لاراو تصوف کی

درحمان با باکلکک پیروی دی.
که په ژور نظر ور ته وگورونو دا سبکو نه بیاټول سره نزدی اوشریکک دی. څکه

چی حمید د تشبیها تو او استعمارا تو

په راوړلو کی بیا څه عبدالقادر ته ور ته دی او میرزا حنان همدغو ټولو سره په فکر کی مل دی

ددوی دسبکک د ټولولو دپاره باید هغه خاصیتو نه ولټول سی چی دوه سبکه په ظاهر او باطن کی سره بیل کړی اودا

ځانله څیړنه او پلټنه غواړی.

# دشمس الدین اجتماعی نظریات

دشمس الدین په دیوان کی ډیر اجتماعی اواخلاقی افکار، دظالمانو غندنه اود ظلم څخه شکوه اوداسی نور اجتماعی

افکار ډیر لیدل کیږی. پهلاندی شعر کی دخپل وخت اجتماعی عیبونه لکه حسد، چغلی، ظلم اونور بیانوی:

جوړ له غمه دیعقوب بیت الحزن دی
څوک په ورو پکښی ژړا کا څوک کوکار
په سبب دظـا لمانو حاکمانـو
څنی تښتی دولتمن او ساهو کار

هر سړی یی له حسده هسی پر دی
لکـه پـر وی په دانه سره انـار
همچغلی به یو دبل په دروغ کاندی
چی فلانا لری هزار هـزار

له تهمته ددولت به سر تور گـرزی
څوک له وېری به تر سر نه تړی دستار

ده دیوه قومی شاعر په څېر دخپلی اجتماع عیبو نه په مطالعه کړی وه. ټولنی ته یی دحقیقت په ستر گه کتلی دی اودمادیت

اوماده پرستی څخه سرټکوی:
څوک چی نن لری په لاس کی زروسیم
د هغه دسپی واجب گڼم تعظیم

هر منعم چې وي احمق لقمان باله شي
خوار مفلس چې وي دانا بولي لئيم
وبي زرته به سلام نکړي عليک
وزردار ته لاس پرسر کې په تکريم

دولت من به پېزاري وکور ته بولي
خوار نيستمن په سوټي باسي له اقليم
وغني ته سپي په لم خو شامندي کا
هر يو سپي وي له فقيره سره غليم

# د شمس الدين عشق او تصوف

رحمان بابا عشق د موجوداتو پلار
ګڼي او وايي:

دا جهان دي خداي له عشقه پيدا کړي
د همه ؤ مو جوداتو پلار دی دا

مګر شمس الدين د عشق په غلبه کې د عقل
او هوش مغلوبيت داسې ښکاره کوي:

پر خاطر مې د يار مينه سوه غالبه
عقل و هوش زما له سره شو غايب
که نظر کوم د عشق و طلسمات ته
عجايب سو پر دا هسې عجايب

چې مې وواهه رقم د تورو زلفو
مجنون زه کړم پر خپل ځاى باندې نايب
لکه څوک چې له ګناهه تو به ګار سي
عشق د بل د مينې هسې کړم تايب

او دلته اقرار کوي چې که معشوق
د عاشق وصال و نه غواړي نو په دې خوند
به د عاشق خوله خوږه نه سي.

څو کشش يې له طرفه د يار نه وي
کله رسي و مطلوب و ته طالب
عشق د انسان په خټه کې اخښلی دی،

د انسان پيدا ښت له عشقه دی. انسان پر خپل
اصل عاشق دی. دی په خپله هم سر دی او هم
له اسرارو څخه دی

د عشق په باره کې فلاسفه او پوهان
ډېرې نظريې لري:
افلاطون وايي د عالم د ادراک حصول
د انسان د پاره په اغراق کې دی چې د علم

انتهايي مرتبه ده او د دې مرتبې ته انسان
په عشق سره رسيدلای سي.
دی د عشق موضوع خورا ښه څېړي او

وايي چې روح په مجرداتو کې دنيا ته
تر راتلو د مخه حقيقي زيبايي او ښايست
(چې افلاطون يې خير بولي) ليدلی ؤ،

نو چې دنيا ته راغی په حجاب کې پټ سو او
د لته ظاهري او مجازي ښايست وينې، نو
ناآرامه او په حقيقي عشق پسې سرګردانه

دی ځکه نو پر جمال مين کيږي.
د اسلام لوی روحاني فيلسوف حضرت
جلال الدين بلخي (رح) په خپله مثنوي کې

هم عينا و د غه عشق ته داسې اشاره کړې ده
چې د افلا طو ن د نظر يې روح څخه
معلوميږي:

بشنو از نى چون حکايت ميکند
از جدايي ها شکايت ميکند

کز نيستان تا مرا ببريده اند
وز نفيرم مرد و زن ناليده اند

هر کسى کو دور ماند از اصل خويش
باز جويد روز ګار وصل خويش

شمس الدين کاکړ هم و دغه نزولي سير
ته ښه متوجه دی او د روح تکليف يې په
دې پرديسي او جلاوطنۍ کې بيان کړی دی

او د هغه اصله څخه چې جلا سوی دی بېر ته
يې لټوي:

شپه وورځ وعادتي د يار په وصل
په هجران کي اوس يو دم تحمل نه کا
لټوم د خپلي ور کي په طلب
هزار مخه، پکښي نه ويئم مطلب

او په ډېلار کي يو ښه پوخ فکر لري چي
وايي دعقل څښتن ته بايد ده چي خپل
وروستي مطلب ته چي مقصد يي وصل دي،

ځان ورسوي:
زه هغه ګټم کچه دعشق په کار کي
څو له خپله ياره حاصل نه کا

فلو تين دلو مړکه مسيحي پېړي فيلسوف
دنوي افلاطوني فلسفي موسس هم داسي
نظر يه لري چي ټول موجودات په علم کي

د(ذات کامل) دروښنايي څخه پيدا سوي
دي او سخت په تلاښ کي دي چي بېر ته وخپل
مرکز ته ورسيږي. دفلاسفه و په نظر هم

«عشق» د انسان په خټه کي اخښل سوي دي.
نو انسان هم هر وخت ارزو لري چي دخپلي
غريزې پيروي وکړي ځکه نو انسان دخپل

فطري عشق په رڼا کي دکاينا تو دجمال
ننداره کوي څو تر دغو ننداروور تېريږي
، هغه عشق ته رسيږي چي مدار ئي دی.

په پښتو ادب کي که څه هم په خورا پخوا
زمانو کي زاهدان او د خداى دوستان
تېر سوي دي خو دهغو په روح کي دمغلو بيت،

انزوا او تجرد خيال نه دي څرګند سوي.
دمغلو دزماني را په دې خوا په پښتو شعر
کي تصوفي افکار موندل کيږي. تر

شيخ متي رح (۶۰۳ه) وروسته په پښتو شعر
کي دغه سلسله داخله سوې ده او د ميرزا
انصاري او دولت خان ديوانونه د تصوف

او معرفت په افکارو ډک دي.
وروسته خوشحال خان، رحمان بابا،
حميد، پير محمد، عبدالقادر، شمس الدين

کاکړ او نورو هر يوه په خپل وخت کي
د تصوف مباحث په پښتو شعر کي بيان
کړل شعر او تصوف يي يو د بله ګډ

کړل.
په مخلوقاتو کي د زړې څخه نيولي بيا
تر غرو، دريابو او اسمانو پوري ټول له

دانسان سترګي وراړوي چي په ځينو کي
دښايست او ځينو کي دعظمت نښي پر تي
دي افلاطون، فلو تين او لو نجنيوس په

مخلوقاتو کي جمال او جلال دواړه ويني.
مګر داسلام عارفان لکه سنائي او نورد
کاينا تو په هره ذره کي دجمال ننداره

کوي، زموږ فيلسوف شاعر خوشحال خان
هم دعالم په ننداره کي دعالم او خالق ننداره
کوي.

راسه وغړوه سترګي
دجهان ننداره ګوره
چي ښايست لري په ستورو
داسمان ننداره ګوره

ددې خپل وجود په باغ کي
په هر شان ننداره ګوره
چي هر ګل و ته نظر کړي
د باغوان ننداره ګوره

شمس الدين کاکړ حقيقي جمال په
اشياو کي په خپله څرګند بولي او ترديد
او بې ځايه فکر ته حاجت نه بولي.

حيف چي وصف کاد لبر دخپل جمال
خو د څرګند سي وعالم و ته هلال
دښه مخ وخال و خط ته حاجت نسته
دماهتاب په شپه په کار نه دی مشال

چي دښکلو وجمال ته څوك هوس کا
د پتنګ په شان بې سوځي پر و بال
عاشقان يي داسو دا بولي سو د منه
که يي مومي يو ديدن په سر و مال

# نوی ادب

کار او کارګری د روانی پېړی د نړۍ والو په ادب کی نوی ور پرانست او د ریالستیک ادب یو په زړه پوری اړخ یی را برسیره کړ.

کارګری د وکولای شول چی په سپوږمۍ کی د بشر پښه کښېږدی او د ادب هغه ایډیالی اړخ چی شاعرانو به آسمان ته د شعر زینی

برابرولی، په واقعیت بدل کړ د پیلټون د سویوسانډو څخه نوی ادب ورو ورو خپل ځای د کار د ماشین د خوبوا نګازو

نوی ادب ته پرېږدی او په دې وسیله د ریالستیک ادب د مخی خنډونه هل کېږی.

په دې سبب د کار ادب نوی ادب بللای شو، داسی نوی ادب چی د بشر د پرمختګ په څنګ کی په بېړه مخ په وړاندی روان دی.

---

«د ۱۴ مخ پاته»

شمس الدین ته د عشق رمزونه او رازونه ښه معلوم دی او زړه یی عرش عظیم او د یار د ناستی ځای بللی دی خو اغیار له خپله

حاله نه خبر وی او وایی:

که وا قف سی څوک د مینی په اسرار
نور بایددی چی یی نه کاندی اظهار
منصور دار له څکوی دا و یناوا یی
لیس فی الدار غیره د یار

خلاصی نه دی د عشق لاری د خطره
مار له ګنج سره لازم وی، ګل له خار
که یو لمعه د عشق سوه ور ظاهره
مومنان به شی کل اهل د تاتار

که یو ځلله یی د زړه په ستر ګو ولید
کافران به واړه و شلوی دستار
زړه د هر مومن تنها عرش عظیم دی
یو سر یر د سلطنت بل ځای د یار
«شمس الدینه» خپل سر مه پاشه په خپله
له نا اهله څخه او سه خبر دار

م-عطایی

# ډوولی او تابوت

هغه آسمانی نغمه چی ستا ډوولۍ یی په بدرګه روانه وه ورو ورو زموږ خواته رانژدی کېده.

د څپاند سیند د مستو څپو سره د دغی نغمی یو ځای والی یو آهنګ د بل آهنګ سره داسی یو ځای کړ چی د طبیعت غوږو

ته یی هم خوشحالی ورو بخښله.
د سیند په غاړه د ګڼ ځنګله او سیدونکی مرغان یی په مستی راوستل او دا آهنګونو

د سیند د څپو او ستاد ډوولۍ له نغمو سره یو داسی سمفونی جوړه کړه چی زما د سینی په منځ کی یی زړه په نڅا راوست او له خپلی

جو نګړی را ووتم.
هلته لیری د غر و په لمن کی می د آسمان پر مخ د سپینو او ریځو حاشیی د لمر په

پلوشو کی داسی سرې ولیدی لکه ستا شونډی، زه لا د طبیعت په دغه تماشه کی لاهو وم چی یو په غم لړلی اواز له حاله و یښ کړم.
ستر ګی می خلاصی کړې و می لیدل چی یو ماشوم په هغه تابوت پسی په ژړا رهی دی چی په خاموشی څوک مو پرابړواخیستی و.
پوښتنه می وکړه:
یو د ژوند څخه خواپوړی داسی انسان چی پر سر لی د سپینو و ېښتانو خیمه ولاړه وه په یو معنا داره نګاه راته و کتل او وې ویل:
ای د ژوند د راز څخه بی خبره انسانه!
هغه ډوولۍ چی دی ولیده په حقیقت کی یو تابوت و او دا تابوت چی وینی په حقیقت کی یوه ډوولۍ ده او دا د ژوند اصلی

معنی ده چی هوښیار ئی په معنی پوهېږی.

# د راډيو افغانستان د هنرمندانو کنسرټ

د جمهوري دولت د مترقي اهدافو څخه يو هم د هنر توسعه او متوازن انکشاف دی، د غه وجه ده چې د اطلاعاتو او کلتور

وزارت په خپله کلتوري پاليسي کې د هنر د انکشاف په غرض په ټولو فعاليتو لاس پوري کړي دي څو د هيواد په گوټ گوټ کې

سرايت وکړي چې په دې ټول د يوې خوا د هنر د متوازن انکشاف مفهوم عملي سي او د بلې خوا د هنر واقعي مفهوم خلکو ته

وفهمول سي.

نو هغه وچې د همدې مياشتې په سر کې د راډيو افغانستان د هنرمندانو يو هنري



د راډيويي ننداري تکړه هنرمند حاجي محمد کامران د يوه کوميک اثر کټ داجرا په حال کې ليدل کيږي

او د هنر په هره رشته کې استعدادونه تشويق او ترغيب کړي.

د غه هيله د دې باعث سوه چې بايد د راډيو افغانستان د هنرمندانو د هنري فعاليتو سلسله د هيواد ولاياتو ته هم

تروپ چې د ټولو کنسرټونو او هنري ننداري د اجرا کولو په منظور د هرات او هلمند ولاياتو ته تللي ؤ، د کندهار هنر دوسته

ولايت ته راورسيدی.

د دې هنري تروپ د هنر نمايي ځای د کندهار د سينما صالون ؤ، کنسرټ

داطلاعاتو او کلتور دلوی مدیر ښاغلی ایو بي په وینا افتتاح سو. دوی دجمهوري حکومت کلتوري پالیسي دهنر او ادب دپراختیا په هکله وستایله او وروسته یې ددغه هنري تروپ مشر ظاهر هویدا ته دخپل هدف دبیانولو او دا عضاو دمعرفي کولو موقع ورکړه.

ظاهر هویدا په جمهوري نظام کي دهنر ارزښت ته اشاره وکړه او وې ویل:

هنري ګروپونه ولې ولایاتو ته سفر کوي؟

ددغو هنري ګروپونو د لیږلو څخه د جمهوري حکومت غایه او هدف د امتیازاتو له منځه وړل او په ټول هیواد کي دهنر دپاره دمتوازن انکشاف زمینه برابرول دي. دهنري هیئت غرض دا نه دی چي څه پیسي دځان سره یوسي بلکه هدف دادی چي خلکو ته خپل هنر عرضه کړي.

موږ هیله لرو چي دجمهوري اردو او د پوهني دزده کوونکو او منسوبینو دپاره او حتی دمحبسونو د بندیانو د پاره مجاني کنسرټونه اجرا کړو.

ښاغلی هویدا دخپلي وینا په پای کي خپل هنري ملګري حاضرینو ته معرفي کړل او خوښي یې څرګنده کړه چي دوی څو شپې دکندهار دمیلمه پالونکي ولایت میلمانه دي.

کنسرټ داستاد فقیر محمد ننګیالی په ترومپیت شروع سو. د کنسرټ په جریان کي ځیني انتباهي کومیکڅ انټرکونه هم اجرا او دننداره چیانو د زیاتي علاقي وړ وګرځیدل. په دغو کومیکو انټرکو کي د بې ګناه ګناهکار او داطفائیي د عملي خندونکي تمثیلي پارچي دزیاتي دلچسپۍ وړ او هم دراډیو دخوشخوی هنرمند جمعه ګل خوشخوی تقلیدي پارچي دستاینې لایقي وې چي د تماشاچیانو په پرله پسي چکچکو استقبال سوې.

د غه رنګه د راډیو ځوان هنرمند ښاغلی حبیب شریف هم په دغه کنسرټ کي بـر خــه در لــو ده چــي دحاضرینو په تود هرکلي بدرګه سو.

په پای کي په خپله دظاهر هویدا په زړه پوري اواز او ښکلي پارچي هم دیادوني وړ دي.

دغه کنسرټ چي دشپې پر ۹ بجې او ۳۰ دقیقې شروع سو دشپې تر یوې بجې پوري یې دوام وکړ.

د کنسرټ د ننداري د پاره دکندهار والي او یو شمیر مامورین حاضر سوي وه.

دا ډول کنسرټونه او هنري ننداري که د یوې خوا د خلکو روزمره خستګي رفع کوي د بلې خوا د ټولني د ناوړو عنعناتو او مفاسدو سره مبارزه کوي او د افغاني اصیل فرهنګ او ثقافت د ساتلو او راژوندي کولو په لار کي ستر خدمت کوي.

دجمهوري دولت دغه علاقه او دلچسپي چي دهنر او ادب سره یې لري، د قدر وړده، دغه علاقه موږ ته امیدرا بخښي چي افغاني هنر به ډیر ژر په جهاني معیار توسعه ومومي او په ډیره مترقي شیوه به دژوندانه په بیلو بیلو ساحو کي لـوی لوی بریالیتوبونه زموږ په برخه کړي.



بېنوا

# دشاعر آرزو

که ته ګل وای، زه بلبل وای
د چمن په غېږ کې یاره
نیمه شپه د پسرلي وای
هلته ګوښې له ما لیاره
د سپوږمۍ سپینې رڼا ته
ما له غمه نا قراره
نږدې کړې وای خوله تا ته
د تو دې بوسې د پاره
تا به څه وی خوشنما یه
راته وایه، راته وایه

یا که چېرې له ښه مرغه
ته یوه وای زه پتنګ ستا
په محفل کې د مستانو
هلته خوا کې داورنګ ستا
یا ته لیه کې د خوبانو
چې وای هر یوه په رنګ ستا
د قولي مینې په امر
کښېنستلی وای په څنګ ستا
تا به څه وې، خوشنما یه
راته وایه، راته وایه

# په زړه پورې
# څلوریځې

ګرم نګاه یې! شوخي بې باکي
طرفه ادا یې تل فرحناکي

چې په خندا کې دی او ښکې دردمې
ښې یې وی دوا دی رڼې تڼاکې



چې لب دی سره شي په رنګ د ریان کښې
دغر و نو سر کې په بدخشان کښې

سرو نه هسک کالاری دی ګوری
لعل و یاقوت یې برا ته په کان کښې



ګلګون لباسه چې تال کې ځانګې
جنبش په باد کاد ګلو څانګې

جهنده برق وخرمن د ګل دی
چې له شوخیه په باغ کې دانګې



بزم لېر یزدی په سرد جوشیه
ګرمی سوه و رکه دمی نوشیه

آسمان همیش کا زماله حاله
په وازو ستر ګو چشم پوشیه



شیشه مستانو اوس له محفله ځی
لیری منزل ته له دې منزله ځی

چې لاس یې تش دی له حاصلاته
ځکه له بزمه شکسته دله ځی

کاظم خان «شیدا»

علي محمد «رسولي»

## د شاعر خاطره

د بابا دغره په ارته لمن کې!
د یو ښکلي درې خوا ته مې کتله
هلته لیری د درې په یوه څنډ کې
آبشارو نه خرو ښیدله جوشیدله

د سهار د لمر زر ینه ژړه وړا ننګه
دو یالې پر مخ او بو کې ځلیدله
سبا یې وږمې په هر موج او څپه کې
د یو نوی ژوندانه مژده راوړه له

د هوسۍ یو ګلالۍ بچی ولاړ ؤ!
لو ړ او کښته شاوخوا ته یې ځغستله
مهربانه موریې هلته یو څه لیری
تر یو لویې ونې لاندې څملیدله

یو رنګین مرغه دونې پر سرناست ؤ
چې نغمه یې زما تر غوږ رارسیدله
په رنګینو زمزمو او ترانو کښې!
هغه هم د طبیعت ښکلا ستا یله

خو د لیری د یو تور سنګر و شاته
یو وحشي توره څیره راښکاریدله
یو ښکاري تو پک په لاس کې غلی پروت ؤ
د تو پک خوله یې ورو، ورو راسموله

د هوسۍ ښکلي بچي یې نښان ورکړ
پر «ماشه» باندې یې ګوته ریږدیدله
نا ببره یو ږغ پورته سو آسمان ته!
چې فضا یې هری خوا ته لړزوله

د هوسۍ بچی پر ځمکه باندې ولو ید
له زخمو څخه یې وینه څڅیدله!
موریې ژر خپل نازولي ته نژدې سوه
د هغه پر شاو خوا را ګرزیدله!

یار بېرا غله د هغه خوله بې یې مچ کړه
بیا به کله په امید و در یدله!
د هغې خوا ښکاري تیغ په لاس کې راغی
بیا یې سترګه پر هوسۍ ولګیدله!

هوسۍ و ځغستل د لوړ کنډوو سر ته
ښکاري هم په ډېر تلوار تعقیبوله
هوسۍ لاندې را ایله سوه له کنډو نه
پر یو لو یه تیږه تیږه ولو یدله
پښې یې ماتې سترګې ډکې سوې له اوښکو
په ارمان ار مان یې ساله جسمه تلله
ښکاري دوا ړه ښکاره وا خیستل رهي سو
د هو سه یې له ځان سره خند له
دلته ډېر ظلمونه کړي دي ښکار یانو!
دلته ډېر و خراب کړی طبیعت دی!
دلته ډېری آرزو ګانې خاوری سوی!
دا صحنه و حساس مغز ته مشقت دی

کابل-جمال مینه

## هنـــر او ادب

## دژوندو روستی سلګۍ

وای! له هغې لحظې څخه چې زه د مرګ وروستۍ سلګۍ وهم او تهمې سر ته یې ناسته.

حیف له هغه حاله چې زه دژوند په وروستیو شیبو کې په اوښکو ډکې سترګې

د نوروددوستانو په لړ کې ستا ځاروکم او ته هیڅ درک و نه لری

څو نه به تر یخ وی هغه ګړی چې زه له خبر ولو یدلی یم، دژ بې واك مې پر دی سوی وی، دسترګو په اشاره ستا طلب و کم خو څوك مې په مقصد و نه پو هیږی څو په دغه ارمان له نړی سترګې پټی کړم.

وای! زما پر حال ... حیف! ستا پر سخت زړه چې ما له خپله دیداره محروم تر د نیا تیری کړی.



تهیه کوونکی: میرمن ملاله

# ۱۹۷۵ کال یاد ښځو د حقوقو د تامین زیری راوړونکی

ددې کال د استقبال لپاره باید ټولې ښځې پیشبینه وی ځکه دا هغه کال دی چې د ملګرو ملتو د موسسې له خوا د ښځو د کال

په نامه انتخاب کیږی. په دې هکله په دې وختو نو کې د ملګرو ملتو موسسې خپله ۲۵ غونډه جوړه کړه چې په هغه کې د نړۍ مشهورو او پو

هو ښځو برخه اخیستې وه ددې کال د تجلیل اصلی اهداف دا دی:

د ښځو رسیدل و برابر او مساوی حقوقو

ته.

د هغوی د ژوند تامین د مساوی حقوقو په درلودلو سره.

د مساوی کار حق درلودل، تحصیل، د کار عادلانه دستمزد، پسله واده ښځه د دوی د کار تضمین او د غه رنګه د مساوی مسئولیتو نو

درلودل په کورنی ژوند کې.

ددې کال د تجلیل د پاره په ټوله هیوادونو کې تیاری نیول کیږی نو زموږ

جمهوری حکومت هم په دې هکله په افغانستان کې د ښځو د بین المللی کال د مربوطو نشراتی، اطلاعاتی او کلتوری چارو د ترتیب او تنظیم د پاره یوه لس

کسیزه کمیټه وټاکل. غونډه د اطلاعاتو او کلتور د وزیر پوهاند ډاکتر نوین په مشری وسوه. شو د ښځو د بین المللی کال

د را تلنک د پاره پروګرامونه ترتیب کړی.

د نړۍ ټول هیوادونه به دا کال و لمانځی

او ملګری ملتو نه به په دې مناسبت خپلې نماینده ګانی افریقایی او آسیایی هیوادونو ته ولیږی او په هغه ځایونو کې

به د ښځو د وضعی څخه ځان خبر کړی او وروسته به د هغو مشکلاتو د حل یوه لاره پیدا کړی

ددې ښځو ر کال په راتلو سره البته

ټولې ښځې خوښی او په خپل موقف کې د تحول هیله منې دی. خو تر ټولو له زیږه موږ افغانی میرمنې چې په نوی نظام او نوی

ژوند کې موقدم ایښی دی دا هیله زیاته راسره ده او په دې ایمان لرو چې دا پیاوړی او مترقی نظام زموږ د حالت د ښه کیدلو د پاره

د هیڅ ډول کوښښ او مرستې څخه ځان نه سپموی ځکه نو موږ اوس د ښه موقف او مساوی حقوقو ارزو لرو.

« پاته په ۲۸ مخ کې »

(د میر منو د مجلې څخه)

# د ساینس او تکنالوژۍ د زماني ښځې

د علم او تکنالوژۍ انقلاب د ښځو په حرفوي ژوندانه باندې مهم تغیرات وارد کړي دي او دوی یې دې ته مجبور کړې دي

چې د نوي ژوند علوم او فنون زده کړي په دې عصر کې د ښځو د ژوند طرز او د کار څرنګه والي تغیر موندلی دی او زیاتره

په تخنیکي او صنعتي څانګو کې په کارو لګیادي. د ښځو دا تغیر د نړۍ په زیاترو هیوادو کې راغلی دی . یعنې ښځې د نړۍ

په نوو تخنیکي او کلتوري چارو کې بوخت شوې دي. په تکنالوژۍ او کلتوري چارو کې د ښځو شمولیت د دوی د ډیرو مبارزو او

مجادلو نتیجه ده او نن ورځ هغه کارونه چې پخوا به نارینوو اجرا کول د ښځو او نجونو له خوا سرته رسیږي.

د پرمختللي او صنعتي هیوادو په صنعتي ساحو کې د ښځو د فني او مسلکي سویې د لوړ تیا د پاره اساسي تعلیمات

هیسر سوې دي په پخوا وختو کې څکه چې ښځې په نوموړو ساحو کې پوره معلومات نه درلودل نو په نوموړو کارو کې د دوی د نه

استخدام موجبات برابریدل. په صنعتي هیوادو کې څکه چې کار زیات دی نو له دې کبله د تولیدا تو د زیاتوالي د پاره زیاتو

کار ګرو ته اړتیا ده د بلې خوا زیات شمیر خلک د فني معلوماتو د نه درلودلو له کبله بیکاره پاته دي . چې دداسې خلکو شمیر

نن ورځ په مترقي هیوادو کې لکه امریکا، جرمنی او جاپان ډیر لیدل کیږي.

په تیرو کلو کې د ښځو د ژوندانه طرز

دا نه ایجابول چې دوی دې په فني او تکنالوژي برخو کې معلومات و لري، که څه نو محدودو ښځو به په نوموړو چارو

کې معلومات درلودل د کار زمینه به نه وه ورته مساعده او ښځو به په رسمي د وایرو کې نظر و فا بریکو ته و کار کولو ته ترجیح

ورکول.

په هغو هیوادو کې چې د فني او حرفوي مسلکو د زده کړې د پاره ازاد سیستمونه

نه ستله، نوموړې وظیفه درسمي ساز مانو په غاړه ده او هغه خلک چې په نوموړو رشتو کې تحصیل کوي د تحصیل تر ختمیدو

وروسته په کار ګمارل کیږي.

نن ورځ د عصر دا ایجابا تو په تقاضا او د صنعت د پرمختیا له کبله ډیرې ښځې په

نوموړو څانګو کې په کارو بوختې دي او صنعتي دستګاوې د ښځو په جذ بیدو کې ګټور اقدامات کوي څکه د کار د زیاتوب

له کبله یوا ځې نارینه نه سي کولا ی چې نوموړي کارونه سرته ور سوي نو له دې سببه ښځو ته ښه ترا د کار زمینه مساعده

کیږي د صنعتي هیو اد و په جمله کې سو سیا لیستي هیو ادو په فا بریکو او صنعتي موسسو کې ښځو ته د کار کولو

ډیره موقع ورکړې ده څکه د نوموړو هیوادو ډیرې ښځې په نوموړو ساحو کې په کار او فعالیت لګیادي.

د نړۍ اقتصاد پر کار باندې بنا او کار بیا کارګر غواړي نو د کارګرو د قلت

پاته په ۲۹مخ کې

«الحاج حبیب الله سرپاس»

# ادب نن ادیب ته څه امر کوی؟

تر دې عنوان لاندې د کندهار پهوزینه شپږمه ګڼه مجله کښې ما یو مضمون ولوست چې د ښاغلي اغا محمد «کرزي» له خوا لیکل

شوی و. ښاغلي کرزي په سر کې د خپلو هیلو د سر ته رسیدلو په نسبت چې ځوانانو ته یې درلوده خپله خوښي ښکاره کړې او ویلي

دي چې زه ډیر ویاړم چې نن ځوانان د خپل وطن د علمي او ادبي خدمت په برخه کې تر یوه حده پوری آماده دي. بیا یې د

خپل ځان او د لیکوالو څخه ګیله کړې ده چې موږ ولې د خپل علمي او قلمي قدرت څخه ډیره لږ استفاده کوو او د ځوانانو مجلسو

او ټولونو ته نۍ مخ را اړولی او ویلي یې دي چې کاشکې د دوی د مباحثو محتویات (چې د دوی په مذاق د «ګرداو» په نامه

یادیږي) د یوې سرمایې په توګه تر خپړیدو وروسته ذخیره او راتلونکو نسلو ته پاته کیدای.

ښاغلي کرزي د ژواک صاحب ستاینه کړې ده چې دی په ډیر ډیر دیدلو ګوتو او په سپینه ډیره قلم را پورته کوی او د ځوانانو د طبقې

د تشویق د پاره څه لیکي چې ځوانانو ته جرئت پیداسی او د وطن د ترقی او تعالی د پاره خپل علمي، ادبي او اجتماعي مرستې

ته دوام ورکړي او په دې لار کې باید یو مفرط عشق او علاقه ولري وروسته ښاغلي کرزي په خپل مضمون پیل کوی او هیله

کوي چې په دې اقتراح کښې لیکوال باید برخه واخلي.

دی په خپل مضمون کښې لیکي چې ادب د بشري ژوند ایینداره او ژوند تل د تغیر په حال کې دی او هر عصر بیلې غوښتنې لري. مقصد دا چې ښاغلي کرزي تر ډیره حده

پوری د ادب او ادیب په شا وخوا کښې خپله نظریه ښکاره کړې او په پای کې لیکي چې ادب نن ادیب ته امر کوي

چې لومړی د خلکو ژبه و پاله بیا د خلکو د نیکمرغه او هوسا ژوند د پاره د مینې او محبت پیغامونه خپاره کړه او د هغو چارو

ځان وساته چې د خلکو د سعادت په لار کښې خنډ ګرځي.

اوس را ځو اصل موضوع ته چې د ښاغلي ژواک له خوا یې اقتراح طرحه سوې ده.

ادب په لغت کښې (طور پسندیده) خوښ شوی طرز یا مقبول العامه ته ویل کیږي، مثلا پلانی سړی مؤدب دی یعنې د ده حرکات، سکنات، افعال او اقوال د خلکو

په نظر ډیر ښه ایسی او د علم له نظره ادب پر ۱۲ قسمه ویشل شوی دی چې علم لغت، صرف، نحو، اشتقاق، معانی، بیان، عروض،

قافیه، رسم الخط او د قرض الشعر علم چې په دغه سره د سالم شعر او بد شعر تمیز کیږي او ځینې څلور نور پر اضافه کوي چې

علم انشاء، خطبې رسایل، د محاضراتو علم او تاریخ دی او ادیب هغه سړی ته ویل کیږي چې پر دغو علومو مسلط او یا لږ تر-لږه یو څه لیکلای او ویلای سی که شعر وی که نثر وی فرق نه لری.

ادبیات له هغه وخته څخه شروع سوی دی چی بشر په نړیکی تیت او اجتماعی ژوند ته احتیاج سو. ځکه انسانانو دخپلو مرامو

او مقاصدو تر سره کولو د پاره لسان (ادبیاتو) ته اړ سو چی داد بیاتو په ذریعه دخپلو همنوعانو په فکر، عاطفه، احسا-

ساتو، معاشرت، اخلاق او اطوار و باندی ځانو نه خبر کړی او استفادی ځنی وکړی او دمستفیدوراپو په رڼاکښی خپلی چاری

تر سره ورسوی. خو د هر عصر او دزمانی په مقتضا ادبیاتو بیل بیل شکلونه او طرزونه ځانته غوره کړی دی. مثلاد اسلام

په لومړۍ مرحله کښی ادبیاتو د تصوف جنبه درلوده چی دینی او مذهبی تبلیغات او ارشادات داد بیاتو په ذریعه خلکو ته تبلیغ کیده لیکن دزمانی په تیریدو سره په

ادبیاتو کښی دزهد، تقوا، علم، فلسفی، تاریخ او دنصایحو پله سپکه او عشقی پله یی درنه سوه. یعنی ادب دعاشق او دمعشوق

په منځ کښی لو یه وسیله وګرځیدله چی عاشق خپل جذبات، احساسات او حالات په اشعارو سره اظهار ته راایستل او خپل

مینه یی دګل، بلبل، شمع، پروانی، او نورو شیانو سره تشبیه کول چی علماوو هم ددوی په پیروی راز راز صنایع په ادبیاتو کښی

لکه لفظی او معنوی صنایع، معماوی او نور دعلم په چوکاټ کی راوستل څو شعر تر یو صحیح قانون او اصول لاندی راسی

او دنبه شعر او بدشعر آمیز په وسی.
په نثر کی هم ډیر توجه وسوه چی څه ډول مضمون ولیکل سی او څرنګه یو مقصد

په ښو الفاظو اداسی او بیا د بعضودا نظریه وه چی شعر او نثر باید یو علمی روحیه ولری چی په هغه کښی داجتماع د بهبود د پاره اخلاقی، علمی، اجتماعی

او تربیوی موضوعات داد بیاتو په ژبه خلکو ته تشریح سی یعنی په اجتماع کښی دشجاعت، صداقت، دیانت، الفت، اخوت

او دتعاون صفات ژوندی سی او له بدو افعالو او اقوالو څخه راوګرځی او هم ددوی په عقیده دګل، بلبل او بوراکیسی

باید پاته سی. ځکه داجتماعی امورا تو تر سره رسول او دجامعی په منځ کی اصلاح راوستل اوددوی ښو ښو اعمالو ته متوجه

کول او د بدو څخه لیری کول تر دغو ډیر ضروری بلل سوی دی.
ادب یو عالی معنوی صفت دی چی په هغه

کښی خلل هیڅ کله بروز نه کوی بلکه دهری جامعی او مملکت اخلاق، افعال رسومات، او عنعنات په ده کښی انعکاس مومی.

نو موږ داویلای سو چی ادبیات په هر عصر او په هره جامعه کښی بیل بیل شکلونه او طرزالعملونه لری ځکه په نړیه کښی دنهضت

او دتمدن له شروع څخه تر اوسه پوری ډیر ادباوو او علماوو دخپلو همنوعانو د اخلاقی اعمالو د اصلاح او ترقی د پاره خد-

متونه اولوړلوړ زحمتونه کښلی دی څو دعقل او پوهی شعاع دخلکو په زړو کی انعکاس ومومی او دهغه په رڼا دسعادت او د ترقی

لاری درک کړی او دحقیقی حیات په معنی او مفهوم باندی پوه سی یعنی ذی فکر علماوو او ادباوو داخلاقی او اجتماعی

امورو د اصلاحاتو په مقصد خپل تطبیقات او تجارب د تبلیغاتو، ارشاداتو او نصایحو په عنا وینو لیکلی او خلکو ته یی تقدیم کړی دی لیکن ددې د پاره چی ژر و مقصد ته نایل او ددوی وینا وی مؤثری واقع شی دراز راز طرزو او طریقو څخه یی کار اخیستی دی یعنی دغو مفکرینو هر یوه دخپل فکر

او ذهن په استعداد او اندازه دخپل عصر

او محیط د عواملو په تقاضا چې د خلکو
افکارو او اذهانو ته نسبتاً نژدې وي ډېر
آثاري تصنیف کړي دي. مثلاً ځینو د خپلو

تبلیغاتو او تالیفاتو په ذریعه خلکو ته
د ښو اعمالو توصیه او د ناوړو اخلاقو څخه
یې شدیداً منع کړی دی.

دغه رنګه ځینو بیا تاریخي حکایات
او د اسلافو کارنامې سر مشق ګرځول
په نتیجه کښې د حسنه اعمالو ثمر او د سیئه

افعالو حاصل یې ښکاره کړی دی او هم
ځینو د خوږو اشعارو او جذابو منظومو
په ذریعه دا خدمت تر یوه حده پوري

جامعې ته ابراز کړی دی چې د عوامو
په روحیاتو کښې ژر تاثیر وکړي او عام
فهمه وي یعنې د کوچنیو کوچنیو کیسو او

لطیفو په توګه د زمري، ګیدړې پړانګ،
لیوه چغال، زرکې، آس، او اوښ تر عنوان
لاندې یې سمبولیکه شیوه اتخاذ کړې ده.
یعني هره طریقه او طرز چې په دې لار
کې اتخاذ او عملي سوي دي په خپل
زمان او مکان کې یې ټولنې ته ښه ترا
خدمت انجام کړی او تر یوه حده پوري یې

د سیئاتو څخه جلوګیري کړې ده او ښېګڼې
یې و خلکو ته ښکاره سوي دي.
اما متأخرینو ادباوو دا نکته حس

کړه چې دا ټوله تألیفات او نشرات چې
په عالم کښې هره ورځ خپرېږي یا هغه
نطقونه او کنفرانسونه چې په هر ځای

[ کې صورت مومي د هغو کسانو د پاره دي
چې علمیت لري او په تحریر پوهېږي او
په هغو لغاتو سره چې د مؤلفینو په

تحریر او خبرو کښې مستعملېږي عادي وي.
عوام وګړي چې سواد نلري او یا ډېر پوه
نه وي دا کثرو لغاتو سره بلد نه دي او
سد یې نه په رسېږي. نو څرنګه چې د ناوړو

اخلاقو او سیئه اعمالو مرتکبین هم اکثراً
جهال دي چې باید تر هر څه د مخه اصلاح
سي د دې مقصد د انجام او د دې عزم د تکمیل

د پاره یې په نوي طریقو سره اقدام
وکړ څو د تمثیل هنر یې ایجاد کړ. چې
هر عمل د تمثیل په توګه مجسم او په ساده

طرز سره چې عام فهمه دي خلکو ته عملي
څرګند کړي. هغه وو چې په دنیا کښې ممثلین
(اکټران) په وجود راغلل او تمثیلي

صحنې راووتلې.
ځینو بیا په انفرادي شکل سره حقیقي
یا خیالي ناولونه جوړ کړل چې د کیسو

او افسانو په شکل چې د خلکو رغبت ور ته
کېږي د جامعې د اصلاح د پاره بازار ته
راوایستل. مګر وروسته یې تجارتي جنبه

پیدا کړه او د پیسو د جلبولو د پاره یې
هنري ارزښت خرافاتي جنبه پیدا کړه
او خپله اصلي لار یې ترک وهل چې حتی

نن ورځ هم دا ډول ناولونه په تیاتر او
سینما کې لیدل کېږي.
نو ادبیاتو د زماني په سیر کې مختلفې

بڼې اختیار کړې دي او ډېر تحولات یې
لیدلي دي خصوصاً د کلاسیزم او د رومانتیزم
داد باوو تر منځ چې په پای کې کلاسیزم

خپل مقام په تدریج سره رومانتیزم ته
پرېښود. که څه هم کلاسیک سبک تر اوسه
پوري دوام لري مګر په هغه اندازه چې

په دنیا کښې یې غلبه درلوده اوس یې نه لري
ځکه رقیب یې رومانتیزم د عوامو پر مذاق
ډېر په زړه پوري او په عین حال کښې

تفریحي جنبه هم لري.
زه ادب منحصر نه بولم چې په یوه جماعت
یا ټولنې پانډې اطلاق سي، که محرومین
یا منزویان که په جامعه کې وي یا د جامعې

سره علاقه نلري بلکه دا یو استعداد او ملکه بولم چې د اجتماع په هره طبقه کښی پیدا کیږي که بډای وي که فقیر که شاه وي که ګدا، که ښځه وي که نر فرق نه لري ځکه که موږ ګذشته آثار وګورو د هري طبقي تالیفات، تصنیفات، اشعار مضامین لیدلای سو. مګر فرق یې دونه کیږي چې یوه اشخاصو او عالمانو نسبت و نورو ته لوړ آثار یې جامعې ته وړاندې کړیدي چې تر اوسه پوري د قدر په سترګه ورته کتل کیږي او د دوی د کالیزو محفلونه هر چیري برپا یه کیږي.

دلته می کالیزو ته فکر سو که چیري د اصلي موضوع څخه نه لیري کیږم د کالیزو په نسبت به یو څه ولیکم.

په دنیا کښی معمول دی چې د تیر سوو لویو اشخاصو د یادوني د پاره په هره جامعه کښی مجلل محفلونه او مجلسونه هر کال جوړیږي چې په دغو مجلسو کښی عصري علماء، فضلاء، ادیبان او لیکوال ګډون کوي او د هغه شخصیت د علمي، اخلاقي، اجتماعي، فلسفي او ادبي آثارو توصیف او تمجید په شعر او نثر کوي چې دا کار د عصري لیکوالو له خوا دستاینې وړ بولو مګر ډیر لږ لیدل کیږي چې د دغو مجالسو د نتایجو څخه استفاده سوې وي مقصد دا دی چې ګډون کوونکی د دغه شخصیت د ژوندانه د آثارو څخه چې پاته سوي دي داسې نتیجه باید واخلي چې ځان ته جرئت ورکړي چې دی هم د هغو پشان یو ادبي تالیف یا اجتماعي تصنیف چې د آینده نسل د پاره یوه اخلاقي یا علمي ذخیره وي پرېږدي که څه هم په نړۍ کښی تخنیکي انکشافات تر پخوا ډیر ډیر پر مخ تللي دي مګر ادبي، اخلاقي اجتماعي تالیفات د پخوانیو علماؤ، ادیبانو په شان دونه نه لیدل کیږي. سره د دغه چې عصري ادیبانو ته وخت ډیر مساعد دی او معلومات هم تر هغو دوی ډیر لري او تعلیمات هم په منظم ډول په نړۍ کښی پر مخ ځي خو بیا هم علمي او ادبي آثار لږ لیدل کیږي چې جامعه له هغه څخه استفاده وکړي. نه پوهیږم چې دا نو ولې. آیا د ښاغلي ژواک په قول کمي او کیفي مسئله پیدا کیږي او که د فردي شعور او اجتماعي شعور مسئله یې حل ولاسي په هر صورت زموږ ګران لیکوال ښایي رڼا پر واچوي او موږ پوه کړي.

اوس به راسو دې ټکي ته چې ادب او ادیب ته څه امر کوي؟

ادب دا ور ته وایي چې ما وروزه، زما حفاظت وکړه. داسې مضامین و خپلې جامعې ته وړاندې کړه چې له هره حیثه مفید او ګټورني په خیر وي داسې لیکنې وکړه چې روح ولري او د خلکو پر اقتضاء او د خلکو په ژبه او د خلکو د احتیاج پر اندازه وي د وچو وچو مضامینو او له نامأنوسو لغاتو څخه صرف نظر وکړه. باید ستا مضامین تازه ګی او بشاشت ولري. ته باید خپل سچه اصیل وطني ادبیات ژوندي وساتې چې د پردو تر شعاع لاندې رانسي.

ته باید سعی وکې چې هغه څه چې لیکې باید انشاء او املاء ولري او د علم الادب پر اصولو او قوانینو برابر وي او زیار و باسه چې د آینده نسل د پاره یوه علمي او ادبي ذخیره پرېږدې لکه د پخوانیو ادباوو آثار چې اوس لاس پر لاس ګرځي او له هغو څخه استفادې کیږي.

په پای کې دا خبره زیاتوم چې زه هم لکه ښاغلي ژواک سپین ږیری او علاوه پر هغه ناروغه هم یم ځکه نو دماغ می ښه کار نه کوي خو بیا هم د ښاغلي طالب د غوښتني سره سم می په دې هکله یو څه ولیکل هیله ده معذرت می و مني.

دمحمد اکبر «کرېمي» رالېږنه

# محمد بشير «شريفي»

# څوک دی؟

دکندهار دځوانو هنرمندانو، شاعرانو او ليکوالو په لړکي داځل يو ځوان شاعر دمجلې ګرانو لوستونکو ته معرفي کول غواړو.

دا ځوان شاعر محمد بشير دمحمد شريف زوی دی چې دشعري ذوق ښېښتن او دشعر او شاعرۍ دپاره مساعده قريحه او استعداد لري. په ۱۳۳۴ کال په کندهار کې زېږېدلی او د احمد شاه بابا دلېسې فارغ التحصيل دی.

ده دژوندانه په شلم پسرلي کې ګام ايښی دی او لکه څرنګه چې خپله وايي «دځوانۍ شور او شعف دغه ته مجبور کړم چې دزړه پټو اسرارو ته د قلم په ژبه دشعر جامې واغوندم او دهنر او ادب مينانو ته يې عرضه کړم».



محمد بشير «شريفي»

محمد بشير په پښتو او دري ژبو اشعار وايي، په رسامۍ کې هم لاس لري. دطبيعت دمناظرو ښکلا زيات خوند اخلي په تېره بيا دسپوږمۍ ننداره ده شعري طبع لا پرجوش راولي، لکه چې وايي:

دسپوږمۍ په سپينو شپو کې چې زړګی مې مستانه شي
ستا دوصل رنګين خيال کې خوب له مانه بېګانه شي

دغه ځوان شاعر سره دهغه چې مورنۍ ژبه يې دري ده خو دپښتو اشعار يې هم دخونده ډک دي

محمد بشير دزمانې دنېرنګ او خپل تقدير څخه ګيله من دی. خو دژوندانه په ډګر کې شکست ته تن نه ور کوي:

ز ه نېرنګ دزمانې يم ځورولی
زه تقدير يم پيدا کړی اسکېرلی

دده دکلام نمونه:

ساقي جام د ميو راکه آرزو زما مينا ده
يو ساعت مې کړه بې غمه چې را ودې مې بناده

په مستو ستا دوو سترګو عادت کړی مې ژوندی دی
زيږوه مې څوک کلوه مې ستا عادت نازو ادا ده

ډک ډک ېې پيالې راکه مې ناب په شنه پياله کې
چې بې خود شمه له ځانه دنيا ځوړه بې وفا ده

تا دبل سره چې وېنم ټول وجود مې سره لمبه شي
ما ته قهر بې د لېرې و پر دې ته دې خندا ده

څوک دي وسو په وصال کې څوک دي سوځې په هجران کې
دا و فا ده که جفا ده ژوند ګې را ته معما ده

په اسرار ستا دسرو شونډو نه پوهېږم ځکه ناردي
چې دعشق په اور کې سوځم ټول وجود مې تمناده

نه مې خيال دسره وزې نه ژوندګي له آرام شته
نه پوهېږم چې بې سترګو په ما کړې څه بلاده

تصور مې نه وکړې چې ته هسې ستمګر بې
«شريفي» دې په اور وسو اوس دې مينه دبل چاده

# یوه تاریخي نادره پېښه

د (اداب الحرب والشجاعه) مؤلف چې فخرالدین مبارکشاه بن حسن (مروردي) نومېږي او د (۶۰۲) ق کال په شاوخوا کې

مړ دی نقل کوي چې زه وړوکی وم په ملتان کې مې د (خواجه علي) په نامه یو سړی ولید چې په څټ کې ئې د څلورو ګوتو

په اندازه ژور چراخ ؤ. ټپ یې اوس جوړ سوی ؤ لیکن څټ ئې ورعیب جن کړی ؤ.

ماله ده څخه وپوښتل چې دا څه در پېښه سوې ده.

ده وویل: کله چې دغزنوي سلطان

خسروشاه (۱) او غوري سلطان علاوالدین (۲) تر منځ د تګین آباد (۳) په ګرماو کې (۴) جګړه ونښته دغزنو یانو لښکر مات سو. او یوه ډله غوریان یې ونیول سوه چې زه هم په هغو کې وم موږ یې سلطـان ته وروستلو.

سلطان علاؤالدین امر وکی چې دا غوریان دې دا عدام ډګر ته وروستل شي او سرونه

دې د څټ دخوا په تورو ووهل شي. په دې ټل کې ئې زه هم پرداڅټ په توره ووهلم

چې په هغه وار مې دمغزي هډوکي پرې سو لیکن نبار ګونه او دغاړې پوست مې تیار او دوژل سوو په منځ کې ښهو ښه لو ېدلی

وم ددښمن دجلادانو په فکر چې موږ ټول مړه سوي ؤ نورا څخه تللي وه زما څخه ډېر ی وینې بهېدلی وې ولی دلمر حرارت او باد

دچلېدو په وجه مې دوینو جریان بند سوی ؤ. زه ټول ورځ او دشپې تر نیما یې لا هغسې د ښهو ښه په حال کې وم لمر ختو ته څه

وخت لا پاته ؤ چې دسهار سوړ باد څه قدر یخ کړم او پر هوښ راغلم چې سټر ګې مې خلاصې کړې سر مې بې واکه ؤ کله چې مې

د کښېنستو هڅه وکړه چې ګورم سر مې پر ځګر باندې راوځړ ېدی. ما په لاسو خپل سر ونیوی او ولوړ ی خوا ته مې پورته کی

چې پر خپل ځای ئې کښېږدم ځکه چې د مغزي دمهرې هډوکي پرې ؤ نو پر خپل ځای نه ټکیه کېدی خود لاسو په مرسته

مې ټینګ نیولی ؤ چې یوه نژدې کلي ته ورروان سوم ځکه چې زما اصلي ټاټوبی تګین آباد ؤ دا کلی زموږ د ښار مربوط ؤ نو خلکو وپېژ ندلم او ما دې ځای د یوه

لوی سړي وکور ته ځان ورساوه.

دا سـړ ی د ښه شهر ت څښتن ؤ. زه دده د کور په دروازه کې ولاړ وم چې دی د سهار دلما نځه د پاره له کوره راووت

او ما ته یې په ځیر وکتل و ئې پېژ ندلم وخپلو نو کرا نو ته یې وربوغ کړه او لاربښوونه یې ورته وکړه څو ما کور ته د ننه

بوزي. چې ورغ ر ڼا سوه دښار څخه یې یو

( پاته په ۳۰ مخ کې )

(۱) خسروشاه د (۵۴۷) څخه تر (۵۵۵) کال پوری پاچا ؤ.

(۲) علاؤالدین د (۵۴۴) څخه تر (۵۵۶)

کال پوری پاچا ؤ.

(۳) تګین آباو کندهار ته نژدې دزا بل دښارو څخه ؤ اوس ئې هیڅ اثار نسته تر هغه

وخته چې مغل پر اقتدار را تلله دا ښار آباد او استوګه پکښې کېدل.

(۴) ګرماو دکندهار او هلمند دولا یتو

په منځ کې یوه چینه ده چې خلک د شفا په نیت لمبیدو ته ورځي.

(د ۶۵ مخ پاته)

# د میزان د میاشتی...

د نجات ورکوونکو په مخ کی زموږ د هیواد ستر شخصیت مرحوم اعلیحضرت غازی محمد نادر شاه ولاړ ؤ چی هیواد ته د دغه واقعی خدمت کولو لارښوونه یی په خپله غاړه اخیستی وه څو هغه ؤ چی د دوی په پاخه تدبیر هیواد د دغه ناوړه حالت څخه نجات پیدا کړ او د اورځ هم د غه د میزان د میاشتی ۲۳ نیټه ده چی موږ یی هر کال لمانځنه کوو.

اعلیحضرت محمد نادر شاه هیواد ته د دغه بدبختۍ څخه د نجات ورکولو څخه وروسته د هیواد د سمون او بیرته جوړوونی د پاره په بولړ کوښښونو شروع وکړه او په دغه وخت کی د افغانستان د پاره یو نوی اساس کښیښودل سو او په دې وخت کی په هیواد کی د ننه د امنیت د پوره ساتلو د پاره زیاته هڅه روا نه وه.

هر کله چی په هیواد کی د علم او پوهی ډیوه د اغتشاش په وخت کی وژل سوی وه د اعلیحضرت محمد نادر شاه په لارښوونه بیرته په هیواد کی د علم او معارف د بیرته راژوندی کولو د پاره پراخی هلی ځلی شروع سوې او د دغو هلو ځلو په نتیجه کی ؤ چی د پوهی دروازې بیرته خلاصی او په شمیر کی یی زیاتوالی راغی. علاوه پر هغه دا کوښښ کیدی چی نور نو هیواد د آبادۍ او ترقۍ په لار کی بی شماره فعالیتونه ترسره سی.

افغان اولس په داسی حال کی چی د دې بختوری ورځی لمانځنه کوی د هیواد د ستر ناجی اعلیحضرت محمد نادر شاه غازی د خدمتونو په قدردانی یادونه کوی او د جمهوری نظام په رڼا کی د ګران هیواد زیات پرمختګ د هر افغان ملی آلوسه بلل کیږی.

(د ۸۵ مخ پاته)

# د پارناس ادبی...

د پارناس دوره علت نه ؤ بلکه معلول ؤ یادا چی د رومانتیزم د دورې په مقابل کښی یوه بغی ده هغه هم د هنر د لوی په خاطر او د هنر منږ د خلاصون په وجه چی د بهای لالا غلام نشی!!

خلاصه: د هنر د هنر د پاره غایه او د پارناس دادبی دورې غایه د ژوند نفی هم نه ده یعنی ژوند د هنر څخه نه نفی کوی. بلکه د هنر استقلال غواړی هغه هم د رومانتیزم د مکتب په پیروی یادا چی د بهای د استعمار په مقابل کښی یوې بغی ته وایی دا ؤ د پارناس دادبی دورې اصل مطلب چی څرګند سو ستاسی درأیی په انتظار.

کابل - پروان کارته - ۵۳-۷-۷

(د ۴۰ مخ پاته)

# ۱۹۷۵ کال یاد ښځو...

ښځه هغه موجود دی چی د هغی د حقوقو تأمین تر اوسه په پوره ډول نه دی شوی او په هره برخه کی ډول ډول پرابلمونه ورته خلق دی چی د پرمختګ مخه یی نیسی. مګر اوس هغه دوری تیری شوی او د جمهوری نظام په رڼا کی ښځی هم د تحول او پرمختګ امیدلری. او غواړی چی د نوری نړۍ د ښځو په څیر د حقوقو او امتیازاتو درلوونکی شی. موږ خپله دا غوښتنه په لوړ آواز د ښځو د نهضت مؤسس او خپل ملی رهبر ته وړاندی کوو او هیله لرو چی د دې بین المللی کال د استقبال په افتخار د ښځو د ژوندانه د زیات بهبود په لار کی ګټور اقدامات وسی.

(د ۲۲مخ پاته)

# د ساینس او تکنالوژی...

دمخنیوی دپاره باید ددواړو جنسو (نراوښځی) څخه کارګر په کارو ګمارل شی.

په هغو هیوادو کی چی دنجونو او ښځود پاره تعلیم اجباری نه وی نو ښځی نه شی کولای چی په مختلفو ساحو کی خپل تحصیل ته دوام ورکړی اود تحصیل دنیمګړتیا له کبله نشی کولای چی دکور څخه د باندی په کار مصروفی شی. په داسی هیوادو کی دنجونو د پاره ثانوی ښوونځی چندانی وجود نلری که وجود هم ولری دښځو ډیر لږ تعداد په سکرتری، کتابداری دکوچنیا تربیه او خیاطی کی روزی. مګر نن ورځ په مترقی هیوادو کی دښځو اونجونو د تعلیمی سویی دلوړولو د پاره تعلیمی موسسی مخ په ډیریدو دی او نوموړی هیوادو نه زیار باسی چی د ژوندانه دسطحی دلوړتیاد پاره د بشری قواوو څخه اعظمی استفاده وکړی.

له نیکه مرغه دښځو تعلیم و تربیه د اقتصادی انکشاف تر څنګک خپل ارتقایی سیر طی کوی او په هر هیواد کی داسی تعلیمی موسسات وجود لری چی دښځو دسویی په لوړولو کی په خدمت بوخت دی.

دنړۍ دا کثرو هیوادو قوانین ښځو او نارینه وو ته په مساوی حقوق او امتیاز قایل شوی دی. مګر دا مساوات دژوندانه په ټولو ساحو کی نه احساس کیږی نو په دې ځای کی باید یوازی د قانون په متن اکتفاء ونه شی او عملاً نوموړی قوانین تر اجرالاندی ونیول شی.

ددوامداره مبارزاتو په اثر ښځو خپل ډیر حقوق او امتیازات ترلاسه کړی دی:

دکارګرو ښځو د تعداد زیاتوالی په اکثرو ټولنو کی دښځو وموقف ته تغیر ورکړی دی اود ښځو سویه اود ژوندانه طرز خپل ارتقایی سیر طی کوی. دښځی دسویی تحول او په ټولنیزو چارو کی ددوی برخه اخیستل په کورنۍ کی ددوی د بریالیتوب سبب ګرځیدلی دی. ځکه دوی کولای شی چی خپل مسئولیت ښه ترادرک او د خپلی ټولنی دپاره ګټور غړی شی.

دمیندو او ماشومانو دروغتیا حمایه کول داجتماعی حکومتو او موسساتو اجتماعی وجیبه ګرځیدلی ده څو ښځه هم دمور په صفت اوهم په ټولنه کی دخدمت دپاره ښه ترا برخه واخلی.

اوسنی ښځی زیاتره دمسئولیت احساس کوی او نه یوازی داچی په اجتماعی، فرهنګی، تخنیکی او سیاسی چارو کی ځان سهیم بولی دژوندانه په ټولو امورو کی ئی خپل موقف او مسئولیت درک کړی دی. دښځو برخه اخیستل په ټولو ساحو کی دمترقی هیوادو پالیسی تشکیلوی.

د اجتماعی مؤسساتو وظیفه داده چی د کلیوالو او ښاری ښځو تر منځ پوره توافق منځ ته راولی او کلیوالی ښځی خپلو تحصیلاتو ته متوجه کړی او هم دهغو حقوق ورژوندی کړی.

دښاری او کلیوالو ښځو تر منځ ډیر فرق موجود دی او کلیوالی ښځی وډیری مرستی ته اړتیا لری. ننني پوهی او

«پاته په ۳۰ مخ کی»

(د ۲۷ مخ پاته)

# یوه تاریخي نادره...

ما هر جراح راوغوښت او ورته وې وییل چې که ته دده په جوړ تیا کې زحمت وکاږې زه لس زره درهمه درکوم

جراح تودې اوبه راوغوښتې او زما ټپ یې را پرېوی د بادام لرګی یې راوغوښت او د موږې په اندازه یې نوکې ځنې پرې کې زما د غاړې د هډوکي په دواړو خواوو کې یې ورننه ایستې او زما سر یې پر خپل ځای باندې را نصب او پوست یې باندې وګنډی

یو څه دوا یې باندې راو تړل په دې هکله یې ځلاږ ښوونې وکړې او هم یې توده ښوروا راوغوښتل په کاچوغه یې نوکې را کړه چې تر حلق هم تېره سوه- پسله هغه یې وویل چې دا ښوروا به دورځې پنځه واره ور کوې. پخپله به جراح دورځې یوه یادوې پلا را تلی ؤ زما ټپ به یې کاته او نوې دوا به یې پر ایښووله او دا به یې راته وییل چې ته به کېږې- دده د مهارت او پوهې په برکت مې دریمه ورځ په خبرو پیل وکی. شلمه ورځ ټپ پر مخ جوړ سو او خوړک مې چې تر دې وخته د بلچا پلاس ؤ له دې وروسته مې پخپله کاوه د کور څښتن چې زما د جوړ تیا څخه مطمئن سو- نوی کالی یې را ته جوړ کړی وه هغه مې واغوستل له دې وروسته یې په ډېره درناوی دخپل کور پر خوا ولېږلم.

زموږ کره زما د مرګ حال ورغلی او زما د پاتا کمبله یې اچولی او بېرته ټوله سوې وه- چې تر اوسه مې کورنۍ په ماتم کې ناست وه. زما په ورتګ یو جهان خوشالي جوړه سوه. خیرا تونه او میلمستیاوې شروع سوې.

ځکه چې دعلاو الدین لښکر ددې ځای په لېری سوی ؤ نو هغه پخوانی ژوند ته مو دوام ورکی. خدای پاک تر ډېره وخته زه او زما اولاد و نه ښه وسا تلو. یو وخت بیا دغزنی د(غز) طایفې پر تګین آباد باندې یرغل وکړ. خلک ډېر په عذاب سوه ځکه چې ما یو وار دغوری لښکر وعذابونه حتی مرګ په خپلو سترګو لیدلی ؤ بالا می د داسې پېښو توان په ځان کې ونه لیدی دادې چې د مستنګ دلارې ملتان ته راو تښتېدلم اوس پنځلس کاله کیږې چې دلته استېږم.

فخر الدین مبارک شاه وائي: چې دا سړی چې تر دې وخته ژوندی پاته سوی ؤ کله چې یې اجل ورسیدی یوه ورځ یې په زوره و نوبل او په مغزی کې یې ټکک سو نو هغه د مغزې لرګی یې چې دده سر جګ په دریدلی ؤ دزمانې په تېریدو سره بوس سوی ؤ، په دې ورځ مات سو او (خواجه علی) ځای پر ځای مړ سو.

---

(د ۲۹ مخ پاته)

تکنالوژی دژواندانه طرز د بدلون سره مخامخ کړی دی او دا موقع یې برابره کړې ده چې انسانان د تېرو پېړیو درانه باروړنه داوږو څخه ایسته کړي. اوسنۍ نړۍ د ساینس او تکنالوژی نړۍ ده اوسنی ژوند تر پخوانی ژوند بهتره دی ځکه نو دا بهبودی د ټولنو د ټولو غړو ونه ستړی کیدونکی هڅه او کوښښ غواړی.

ژباړونکی: محمدیار محمدزوی

# دامپراطور خزانې

د روم دلویې امپراطورۍ په وخت کې
دانقلاب اوښورښ اور په اسیا یې مختلفو
مستعمرو کې بل شو نو رومیان دې ته
مجبور سول چې هلته یو شمېر لښکر ولېږي
ترڅو دانقلاب اوښورښ اورمړ کړي.
دفلسطین په هیواد کې دروم دلښکرو
قوماندان چې ډېر تکړه اوغښتلی افسر و
«نسپاسیانوس» نومېدی زوی یې «تیتوس»
چې اته ویشت کلن و د پلار سره په بولي او
عسکري چارو کې مرسته کوله.
دغه ځوان ډېر ښکلی، زړه ور اودلاور
و. هیڅکله یې ډار او بېرې په زړه کې
رخنه نه پیدا کوله همدارنګه دمرګ څخه
هم نه بېرېدی. پلار اوزوی تر یوې
اندازې پورې وکولای سوای چې دځینو
هیوادو په ګوښو کې دښورښ اورمړ کې
کي. فقط او فقط ددوی په ماموریت کې دغه
امر پاته و چې «اورشلم» تر خپل نفوذ
لاندې راولي. دوی پایتخت دځلور
خواوو محاصره کړی و اودې ته منتظره
وه چې لوږه خپل کار وکړي ترڅو ښوربښیان
دغه ته مجبوره سي چې دښاره دباندې
راووزي او تسلیم سي.
تیتوس ته په ټولو ځایو کې دپلار لښکر
ډېر غښتلی اوزړه ور معلومېدی. تیتوس
داامیدواری لرله چې هر ځای به بري
زموږ په برخه وي او ډېري ولجې به زموږ
ولاس ته راشي.
یوه ورځ تیتوس د قشلې وخوا ته
ولاړ یو دلښکریانو چې په (ادیما) کې یې ټمبو
(خیمه) وهلې وه پر لاری د درو لښکریانو سره
مخامخ شو چې یو سړی او یوې ښځې ته ئې په
لاسو کې زولنې اچولې دي او ځغلوي یې.
تیتوس د دوی څخه پوښتنه وکړه چې چېرې ځې
څرنګه چې تیتوس په عادي کالو کې
و لښکریانو دی ونه پېژاند په توهین
آمیزه وضعیت یې ورته وکتل او ډېر په
قهر سول چې یوه بیګانه سړي څله زموږ
لار نیولې ده یوه د سربازانو څخه په ډېر
غضب او قهر وویل:
ته څوك یې چې داسوال زموږ څخه
کوې؟
زه تیتوس یم.
څه وخت چې لښکریانو دا نوم واورید
وخاورو ته ولویدل، دډېره وهمه په لړزیدو
سول. وروسته تر هغه یوه تر شونډانو
لاندې وویل:
جاردی سم... جاردی سم... جاردی سم.
نو په دې ترڅ کې تیتوس دآس څخه
راکښته سو، وهغې ښځې او نارینه ته ور-
نژدې سو او ویې ویل:
تاسې څوك یاست؟
ښځې ځواب ورکړ:
دغه زما پلار دی او زه یې لور یم. موږ
د (یشع) زراعتي کلیوال یو چې ستاسو
لښکرو هغه تالاك کړی دی نارینه یې
بندیان او دخپلو ځانو مریان یې وګرځول
ولې موږ ددې هیواد نه یو نو دوی حق
نه لري چې زموږ سره دښوربښیانو پشان

رفتار وکړی
تاسو د کوم هیواد یاست؟
موږ د بحیرهٔ عرب یو موږ د خپلو پلرو
او نیکه ګانو مځکې پر ښودی د روزی
د لاس ته راوړلو د پاره د پښ وطن ته راغلی یو
یو پنځلی اسرائیلیانو موږ د ښع په کښت
وکروندې کې په خدمت قبول کړی یو.
ای باداره! حریت او آزادی پر موږ
باندی ارزانی کړه په دې یقین ولره چې
موږ به ستا بد د پاره وتاسو ته هیڅ ضرر او
زیان و نه رسوو. تاسو هم د طمعی سترګې
زموږ هیواد ته نه لری نو له دې کبله زموږ
او ستاسو په منځ کې هیڅ خصومت او دښمنی
نه سته
ولې تاسی آزاد یاست

نجلۍ د تیتوس و پښو ته ولویدله او پښې
یې ورمچ کړې تیتوس په ډېره نرمی نجلۍ له
مځکې را پورته کړه و لښکریانو ته یې مخ ور
واړاوه او ور ته وې ویل:
زه هیڅکله چا ته اجازه نه ورکوم چې
غیر له جنګی اشخاصو نورو کسانو ته د تعرض
او تیری لاس وا چوی.
نو په دې وخت کې یې د نجلۍ و خوا ته
مخ واړاوه او وې ویل: ای د سپوږمۍ په
شان ښکلې نوم دې څه دی؟
زبرجده.
ښـکـلې زبرجـدې په پوره ډاډ
او اطمینان د خپل پلار سره چې وهر ځای
ته ځی ولاړه سه او هر چا که ضرر او زیان
در رساوه هغه و ما ته بیا معرفی کړه
که د تاریخ پاڼې وکتل سی په هغه وخت
کې داسی حادثات او وقایع ډیر پیښیدل
چې خلکو به یې پیشبینی کول په دې لړ کې
یو ښځې په روم کې ژوند کاوه د خلکو
طالع او بختونه یې کتل او ټګی یی
معلوموله د دغې ښځې نوم «زا بیرجا» دی.
رومی زا بیرجا هم هغه عربی زبرجده
ده چې تیتوس د غلامۍ څخه نجات ورکړ
هغه او پلار یې آزاد کړه. خو په دغه ترځ
کې چې تیتوس دا د لښکریانو څخه خلاص ول
د تیتوس د نوکر سترګې پر دې باندی
ولګیدې پر هغې باندی مین سو په دې هڅه
کې سو چې د نوموړې ښکلې او ږې مخی
نجلۍ کورچیری دی د خپل باداره څخه یې
اجازه واخیسته چې د دې نجلۍ سره واده
وکړی په دې ډول عربه زبرجده د رومی
سرباز «لوکوس مارکوس» د ژوند
ملګری سوه.
څه وخت چې زبرجده د و هم محل د تیتوس
سره مخامخ سوه؛ د هغه څخه یې هیله وکړه
چې زه کولای سم ستا بخت او طالع وګورم؛
تیتوس خپل لاس د هغې خوا ته اوږد کړ څه
وخت چې زبرجدې د تیتوس ورغوی به ځیر
وکوت نو داسی یې وویل:
زما باداره! ستا د لاری په سر کې
درې لویې خزانې وجود لری ډیر ژر به پر
ټولو شیانو باندی بری و مومی د ټولو
بادار به شی.
په (٦٩) میلادی کال کې د (جلبا)
امپراطور د مرګ نه وروسته د رومی
افسرانو په منځ کې داخلی جګړې او
مخالفتونه پیدا شوه ټولو لښکریانو چې په
ختیځو هیوادو کې وه (د امپراطوریه تر
نفوذ او تسلط لاندی وه) پر دې باندی
متحد شول چې نسباسیانوس د تیتوس پلار
وروسته تر جلبا د روم امپراطور وټاکی.
نوی امپراطور په ډیره چټکتیا سره
وروم ته ځان ورساوه د فلسطین د انقلاب او
ښورښ داورد وژلو پاره یې خپل زوی تیتوس

پر ښودځو په هر تر تیب چې دی باید (اورشلم) تر خپل تسلط لاندې راولي تیتوس ښورښیا ن ښه پوره وځکول او هغو ی یې تیت و پر ک کړل داورشلم پر ښار باندی غالب سو

هغه پیښه چې لاندی یې ذکر کیږی دهغې عربی ښځې پیښکو یې ته د حقیقت بڼه ور کوی.

یوه ورځ رومیانو د اورشلم دغرو وشا ته پرلو یه لار باندی دکلیمیانو یو کاروان ونیو. په دې کاروان کې پنځه تنه کوډګران وه یوه ددوی د تیتوس څخه خواهش وکړچې دوی ایله کړه او دوی به په بدل کې یو لوی راز تاسو ته اوښکار کړی

تیتوس په دې راضی سو. کو ډګر هغه مغازه چې کلیمیانو خپل مالو نه او جواهرات پکښی پټ کړی وه وروښودل.

تیتوس هغه پنځه نفره کوډګران آزاد کړل او هغه لویه خزانه د تیتوس ولاس ته ورغله. په دې ډول تیتوس یوه د هغو درو خزانو څخه چې زبرجدی یې پیښکو یې کړې وه لاس ته راوړه.

څه وخت چې د فلسطین وضع د ښخو اپه شان عادی سوه تیتوس او نو کر یې لوکوس اودده ماندینه زبرجده دخو افسرانو سره یوځای روم ته راغلل.

په دې وخت کې نسباسیانوس دامپراطورئ پر تخت باندی ناست ؤ دمملکت چاری یې په خپلو پولادی منګو کې نیولی وې

هغه په اصلاحاتو پیل کړی ؤخو په دې پوهیدی چې بیله پیسو او دارایی اصلاحات محال دی، نو داقتصاد او سپما لار یې

واخیسته هیڅکله یې یوه روپۍ بیهوده اوچتی نه مصر فوله. نو ځکه خلکو دی بخیل باله لیکن ده ودوی ته داسی

ویل:

زماداخوښه ده چې زما تر مرګ وروسته خلک ووایی چې پلانی بخیل ؤ امارومی خوشبخته کړ نه داچې ووایی هغه ډیر سخی اوجوا دسړی ؤ خوروم یی فقیر کړ.

په رښتیا سره روم ددغه پاچا په وخت کې لوی اوسعادت مندسو ځکه چې هغه ښه اساسی قانون وضع کړ، آبادی او تعمیرات یې زیات کړل، په تمامه معنا یې امنیت ټینګ کی. د محکمو اواردوسته او بنسټ یې دمنظمو قواعدو پر اساس بنا کړ، علوموا وښایسته هنرونو ته یې تقویه ور کړه او یو ډول مخصوص مالیات او قوانین یې وضع کړی وه چې دهغه په وسیله یې د بډا یانو څخه پیسی اخیستی د فقیرانو او بینوا یانو په چارو کې به یې خر څولی.

تیتوس حکمرانی او د پاچهۍ اصول اولاری دخپل پلار څخه زده کړی وې ټوله نیک صفتونه یې د پلار څخه کسب کړل او دعیبو څخه یې ځان ګوښه کړ.

تیتوس په (۷۹) کال کې دسلطنت پر تخت باندی کښیناست خلکو دده په وخت کې په ډیره ارامی ژوند کاوه.دی د پلار په خلاف ډیر سخی اوجواد ؤ هغه څه چې یې پلار دلسو کالو په جریان کې ټول کړې وه هغه یې په لږه موده کې مصرف کړل. دغه ځوان واکمن فقط (۱۷) میاشتی سلطنت وکړ خو سر بیره پر دې رومیانو داسی پاچهی نه وه لیدلی. خلکو د (بشر خوشبخت تیتوس) و باله او دالقب دوهمه خزانه وه چې د تیتوس ولاس ته ورغله

( پاته په ۳۵ مخ کې )

دمني خاطره

# د سرو زرو درمند!

دوی وایي: مني دی او مني د خزان د بڼې څېره او عکس. منم چې اوس د پسرلي څخه اته میاشتې تېرې دي.

منم چې د ارغنداو غاړه د پسرلي د ګلونو «ګواره» نه ګل کېږي او د سپېنګیو بورا-ګانو پر ګلونو شخول نه دي اچولي او

منم چې دلته د بلبلو د چوښتي بڼ بیده غوندي ښکاري، خو . دا د ارغنداو غاړه ده د بابا صاحب څخه نیولې تر شالماره-

د شالمار څخه تر «سردې» پورې درانه لمر وړانګو بله نخره ښوولې ده.

دلته: هو! دلته ارغنداو دی او دا کندهار!!

دلته د شینکي اسمان د غېږې څخه-دا سمان د ژړې ټیکې د منځه څخه د سرو زرو باران دی. پر همدغه ټاټوبي زرینې شغلې اوري. دلته-د دغو ژړو پاڼو د پاسه ژړې زرینې وړانګې ستې.

دوی وایي مني دی، خزان دی، بورا نشته- بلبلان چپ دي.

یه! دلته د ونو د پاڼو سره د ژړې ټیکې خواله کېږي- د لمر د ژړې ټیکې د زرینو وړانګو!

نو ځکه د «روه د پتې» یاد- د بلخ د نو بهار د پیغلو ژړې جامې او ژړ پلوونه چې پر هغه آتشکده به شانه وراته کېدلې-دا خاطره د «روه د پتې» «ارها نجن» هوس پاروي هلته د بلخ برم او دلته د ارغنداو د سرو زرو درمند:

ژړې لمر ژړې وړانګې او ژړې پاڼې!!
څو نه مزه داري او څو نه له خوندده

ډکې ...

دلته کندهار دی او دغه ارغنداو نارنجي، ژړې، طلایي، پاڼې- د ژړو وړانګو په غېږ کې.

نشته د د سرو زرو د درمند منځي ته تور اوره او خړې اوریځې منظره ده، د ښایسته ټکه خیالور کې ډېره خیالور کې. د درمند- د ژړو زرینو پاڼو سر ته د ونو او بوواله ده او کښته ارغنداو.

دارني او به دا نارو د ونو په رنګونو کې یاقوتي سوروالی پیدا کوي او د زړو وایته و په پاڼو خوګانو کې ژړو کې لمبه:

بهېږي د بري خوا څخه لري ته- پر پنجوایي- پر روه اباد- د ترنک پر لور واوا! ارني بهېږي د سرو زرو درمند سر ته او.

دلته چې د خوا به کند هار خو ابه یاران هره جمعه رادرومي کاریګر، بزګر، باغوانان، ښاریان ...

دارغنداو غاړه د دوی خوشالي. خندا او هوس! ځکه د سرو زرو درمند-دلته پروت دی- په درناوي څوندي ښایسته- څوندي د خوښې مل او ملګري او .. دلته مرګي دی- دلته کیسې هم د میوند-د بولدک د ډهلي -د اصفهان- د لته یادونه شته د شاه محمود داوزېنبي دلته د نارنج د قصر د برم یادسته او دلته د پټو خزانو خبرې. دلته د نازو او زرغونې زامن اولوني راځي - کښېني چېرې؟

دارغنداو پر غاړه د سرو زرو درمند ته ....

خزان چېرې دی خندا ده هوس دی ځکه دلته ارغنداو دی او دا کندهار

د زاړه برم یاد او د نوي برم تلوسه خزان کله مني! د سرو زرو درمند؟ بلې! ارغنداو!!